# د

# رحمان بابا

# دیوان

مصحح مدون او مقابله کونکی
عبدالرؤف بینوا

۱۳۲۶هـ ش/۱۹٤۷ ع

# مقدمه رحمان بابا

## ۱۰٤۲ ــ ۱۱۱۸هـ

**پیژندنه:** د رحمان بابا د پیژندني دپاره همدومره بس دي چه ټول پښتانه ورته بابا وايي. په پښتوکښي د بابا لقب يا هغو شاهنشو ته ورکړي شوي دي چه د توري او توپک په زور ئې پښتنو ته ملکونه نیولي دي او يا هغو فقيرانو ته ورکړی شوي دي چه نه ئې توره نه ئې توپک او نه ئې زور و، خو د خبرو په سحر ئې د پښتنو د

زړونو عالم تسخيرکړي او د هر پښتانه د زړه په تخت ناست پاچهی ئې کړې ده لکه چه رحمان بابا وايي:

د پالنگ او د پیړیی حاجت ئې نشته د
یارانو نشستن د زړه په تخت دي

احمد شاه بابا ته ځکه بابا وايو چه د ډهلی تخت ئې پښتنو ته گټلی و، خو رحمان بابا د خاوروکنډولې په لاس د پښتنو بابا ؤ:

پاچهان که د ډهلي په تخت نازیږي
خوار فقير لره د خاوروکنډولی دي

رحمان بابا په۱۰۴۲ هجري کال د پښتونخوا د پیښور په علاقه په بهادرکلی کښي زيږ يدلي دي او د پلار نوم ئی عبدالستار وُ، قوم ئې که څه هم مومند دي مگر د رحمان بابا مقام له دینه ډیر اوچت دي چه دي کومي خاصی قبیلی یاکوم خاص ټبر ته منسوب شي، ځکه چه لوي او حقيقي شاعران بين الانساني شخصیتونه لري. رحمان بابا هم د ټولو انسانانو دي خو بيا په خاص طور د ټولو پښتنو بابا دي. دی پخپله هم ځان کومي قبیلې ته نه منسوبوی وايي:

زه عاشق یم سر وکار می دي له عشقه
نه خلیل، نه داودزی یم، نه مومند

رحمان بابا فقه او تصوف له ملا محمد یوسف یوسفزی څخه
ولوستل او نور علوم ئې د هغه وخت په

هندوستان کښي زده کړل. لوی عالم او بزرگ زاهد شو، د پښتنو د لويو او وړو عقيده پرې راغله او ورته بابا وويل؛ خو د ده زاهدي د ريا زاهدي او خود نمائي زاهدي نه وه چه تر خرقې لاندي د خدای مخلوق ته دام وغوړوی، په زړه يو څه په خوله بل څه وي. رحمان بابا له داسي زاهدئ څخه توبه باسي:

د ريا له زاهدئ ځما توبه ده
چه ئې کاندي څوك په رسم او په عادات
په ورځ پيدا و نصيحت وايي و بل ته
په شپه ناست وي د مغان په خرابات
دين ئې دام وي د دنيا په لار کښي
ايښي پرې را اړوي وحشيان د مخلوقات
د هغو په لور ئې سترگي وي ختلي
چه په لاس ئې سرمايه وي يا زکات
زه رحمان له هسي خلقه پناه غواړم
هر چه لافه کړي خلاف د مقامات

دي زاهد وو مگر نه تش د خرقې زاهد:

د ريا خرقه ئې خداي مکړه په غاړه
رحمان کوږ دستار تړلي قلندر دي

رحمان بابا په غريبه کورنئ کښي پيدا شوي و، او پخپله هم غريب و، خو دې غريبئ هيڅکله د ده لوړ همت ټيټ کړي نه دي او نه ئې د ده غاړه چا ته کږه کړې او نه ئې لاس د چا خوا ته اوږد کړي دي، وايي:

څوک دي را کاندي قسم په کرد گار
که درم لرم په کور کښي يا دينار
زه درم او دينار نه لرم په کور کښي
ولې نور عالم مي بولي دنيا دار
هم په دا چه نه له ځايه چيرته خوزم
نه د هيڅ يوه مخلوق يم منت بار
آب و خور لکه آسيا په ځاي را رسي
پخپل کور کښي مي سکون دي هم رفتار
لکه ونه مستقيم په خپل مکان يم
که خزان را باندي راشي که بهار

د رحمان بابا د لوړ شخصيت پيژندنه د ده له دې يوې غزلې څخه هم‌ګرانو لوستونکو ته څرګنديدلای شي:

په ښه خوي له بد خواهانو بې پروا يم
په نرمۍ لکه اوبه د اور سزا يم
و هر چا ته پخپل شکل څرګنديږم
آئينه غوندي بې رويه بې ريا يم
قناعت مي تر خرقې لاندي اطلس دي
پټ د درست جهان پادشاه ظاهر ګدا يم
د غنچې په څير په شل ژبو خاموش يم
لکه بوي هسي په پټه خوله ګويا يم
هم په دا سپينو جامو معلوميږم
لکه ابر هم ګوهر يم هم دريا يم
دراز عمر مي حاصل شوله راستيه
لکه سر و مدام سبز و تازه پايم
که چا لار د عاشقۍ ده ورکه کړې
زه رحمان د ګمرهانو رهنما يم

## د رحمان بابا شعر

رحمان بابا پخپله د خپل شعر په باب کښې فيصله کړې ده چه وايي:

چه منکر پرې اعتراض کولی نشي
دا دئ شعر دي رحمانه که اعجاز

ځکه چه اعتراض خو به د يو پښتون له خوا کيده مګر پښتون خو ده ته بابا ويلي دي نو بيا چرته دا اعتراض او انکار ځاي پاتيدي شي! بې له دې چه بيرته د ده له خولې ووايو:

هم نغمې کاندي هم رقص کا هم خاندي
د رحمان په شعر ترکي د باګرام

هو، دا يوه خبره شته چه د رحمان بابا شعر يوازي د باګرام د ترکو نه دي بلکه د ده د اشعارو لوي او مهم خصوصيت دا دي چه د هر چا او هري ډلي په زړه جوړ او په خوله جاري دي: يو پلو ته‌که د باګرام ترکي پرې نڅا کوي بل پلو ته د زاهدانو له صومعې نه هم د ده د اشعارو ږغ راځي چه وايي:

خرقه پوشه په خرقه کښې دي موندلي
هغه خط چه په دنيا کښې دنيا دار کا

له یوې خوا که ئې مستان په میخانه کښې په ویلو مست زنګیږي او د هر مست له خولې دا چیغه خیژي:

چه د څنګه مي دلبر په لاس کښي جام دي
نن اورنګ د زمانې ځما غلام دي

له بلې خوا ئې واعظان په منبر لولي:

په دنیا کښي که څه کار دي خو د دین دي
د دې کار په کننده وُ آفرین دي

د دنیا تارکان او پریښودونکي ئې په دې بیت خوشحالي کوي:

دا دنیا په احمقانو ده ودانه
دانا نه کا په دنیا باندي غرض

خو دنیا دار ئې بیا دا شعرونه وائي:

ښـــــه ده ښــــه ده دا دنـــــــیــــــا
چـــــه تــــوښـــــه ده د عــــــقـــــبـــــا
د دنــــیـــــا پـــــه بـــــازارکـــــیــــږي
د هــــــغـــــه جــــــهــــــان ســــــودا
پــه دنــیــا کــښــي بــدي نــشــتــه
کــــــه بــــــدي نــــــه وي لـــــه تــــــا
پــه دنــیــا کــښــي لــوي حــکــمــت دي
پـــــرې پـــــوهــــیـــــږي حـــــکـــــمـــــا

غرض دا چه د رحمان بابا د اشعارو یو لوي مزیت دا دي چه د هر چا د ذوق سره برابر مطالب لري او د هر چا د تنهائۍ ملګري دي. په پښتو کښي به ډیر داسي کم کور پیدا شي چه د رحمان بابا دیوان هلته نه وي. حتي پښتنې میرمني د رحمان بابا له روح څخه استمداد کوي او په اشعارو ئې فال ګوري، دا ځکه چه د ده اشعار له هره لوثه پاک او سپیځلي دي، نه د چا بې ځایه هجو او نه د چا د مبالغې نه ډکه مدح او ستاینه پکښي لیدله کیږي داسي نه چه ګوندي رحمان بابا په دې خبرو نه پوهیده، پوهیده خو پرې خوښ نه وُ. لکه چه وایي:

په اشعار کښي قوتاک لکه زمري یم
ولي نه یم د زمري په څیر ګزند
هم په مدح هم په هجو ښه پوهیږم
ولي نه یم په دا چارو ډیر خرسند

بې له عشقه که مي عيب که مي هنر دي
ما غوځ کړي دي له ځانه بل پيوند

ښاغلي راورټي او پادري هيوز انګريزي مستشرقين او اډورن روسي پښتو پيژندونکي رحمان بابا د پښتو د ادب پيشوا بولي. که څه هم پښتانه د پرديو مستشرقينو قضاوت ته څه اړه لري، ځکه چه پردي هيڅکله د رحمان بابا د اشعارو په خصوصيتونو د يو پښتون په شان پوهيداي نشي خو به هم له دې څخه د رحمان ادبي منزلت د پرديو په نظر کښي څرګنديږي چه رحمان بابا نه يوازي پښتنو په بابائي منلي بلکه د دنيا نور پوهان هم د پښتو په ادب کښي د ده لوړ مقام ته قائل دي.

مړينه: رحمان بابا په ۱۱۱۸ هجري کال له دې فاني دنيا څخه سترګي پټي کړې او د پښتونخوا پيښور په علاقه د هزار خاني په هديره کښي ښخ شو چه اوس ئي عام خلق زيارت ته ورځي.

ديوان: د رحمان بابا ديوان څو څو ځلي چاپ شوي دي چه ډيره زړه او چاپي نسخه ئي هغه نسخه ده چه په ۱۲۹۳ هجري کال د مولوي احمد په تصحيح او اهتمام په لاهور کښي چاپ شوې ده، ځما په عقيده دا نسخه تر ټولو چاپي نسخو صحيح او مکمله ده ځکه نو موږ په دې کتاب کښي هغه نسخه اساس ونيوله او له نورو نسخو سره مو مقابله او تصحيح کړه؛ دوهمه چاپي نسخه هغه ده چه پروفيسر عبدالمجيد افغاني يو مختصر تمهيد پرې ليکلي دي، د پروفيسر صاحب تمهيد ډير خوږ او ادبي دي، خو افسوس چه پخپله د ديوان متن د کاغذ د نازکوالي له کبله مغشوش دي؛ کومه دريمه چاپي نسخه هغه نسخه ده چه پروسږ کال يعني په ۱۹۴۸ عيسوي کال په لاهور کښي چاپ شوي او مولانا عبدالقادر صاحب د پښتو پياوړي ليکونکي پرې يو خورا عالمانه تمهيد ليکلي دي په دې تمهيد کښي که څه هم يو دوه ځايه د رحمان بابا ژوند او کلام د سياسي اغراضو دپاره استخدام شوي دي مګر د تمهيد هغه برخي چه هغه يوازي د رحمان بابا د ژوند او شاعرۍ په باب کښي ليکلي شوي خورا عميقي او مفيدي دي، بر سيره په تمهيد د دې کتاب کاغذ او ليکل هم ښه دي خو د محشي صاحب بې ځايه حاشيو ئي د صحافت رنګ ګډ وډ کړي او ډير ځايونه ئي بې لزومه حاشيې پرې ليکلي دي مثلا داسي لغتونه ئي ترجمه کړي چه ترجمې ته اړ نه دي او يا ئې ډير عربي مشهور لغات چه پښتانه ورسره ډير ښه آشنا دي بيرته په عربي ترجمه کړي دي.

دا درې سره نسخې او يا نوري چاپي نسخې ټولي په دو وو دفترونو کي چاپ شوي دي چه هر دفتر ځانته ځانته رديف لري خو دا راته څرګنده نشوه چه د رحمان بابا ديوان په دو دفترونو ويشل له کومه وخته شروع شوي دي؟ آيا دا تقسيم پخپله رحمان بابا کړي که بل چا؟ د رحمان بابا له ژونده چه ښکاريږي خو وايي چه هغه خپل اشعار لا پخپله را غونډ کړي نه دي. دا د دفترونو مردف کول خو لا ځانته خبره ده.

## دا ديوان:

له ډيري مودې ځما دا خواهش ؤ، چه د رحمان بابا ديوان پښتو ټولنه په يوه ښکلي صورت چاپ کړي چه هم ئي ليکل ښه وي او هم ئي املا سره سمه وي او هم په يوه داسي قطع او حجم چاپ شي چه هر لوستونکي ئې په ډيره آسانۍ له ځان سره وګرځولاي شي؛ د مطبوعاتو د مستقل رياست مسلکي مجلس د

پښتو ټولني دا خواهش ومانه، او ما د رحمان بابا د ديوان په تصحيح او مقابله او تدوين شروع وکړه. لمړی مي د دوو دفترو تقسيم له منځه ليري کړ او دواړه دفترونه مي د يوه ديوان په شکل مرتب او مردف کړل وروسته مي دا ديوان د اوسني رسم الخط او املا په اساس تصحيح کړ، په پاي کي مي پورتنۍ درې نسخې په کوم ځاي کښي چه ضرورت وُ سره مقابله کړې، مگر څنگه چه په دې ترتيب دا لمړی ځل دي چه د رحمان بابا ديوان مدون، مرتب او چاپيږي نو دا احتمال لري چه هغه شانته به چه د پښتو اديبانو انتهائي خواهش وي دا ديوان تصحيح او مقابله شوي نه وي، خو بيا هم يو نوي قدم دي هيله لرم چه د پښتو پوهانو ملگرو په مرسته به د دوهم چاپ کي دا نسخه ښه بشپړه او تکميله شي.

عبدالؤف بينوا
د پښتو ټولني مشر
۱۹٤۷/۱۳۲٦

# بِسْمِ اللّٰهِ الرَّحْمٰنِ الرَّحِيمُ

## ا

گوره هسي کردگار دي رب ځما    چه صاحب د کل اختيار دي رب ځما
همګي بزرګواران چه ښوك ئې وايي    تر همه ؤ بزرګوار دي رب ځما
نه ئې هيڅ حاجت په چا باندي موقوف دي    نه د هيچا منت بار دي رب ځما
له نيستۍ ئې د هستۍ صورت پيدا کړ    هسي رنګ پروردګار دي رب ځما
هم صانع دي د جمله ؤ مصنوعاتو    هم سامع د هر ګفتار دي رب ځما
چه ئې هيچري نه مثل نه مثال شته    د هغو عطر و عطار دي رب ځما
هر تعمير چه د دنيا او د عقبیٰ دي    د همه واړو معمار دي رب ځما
خوانندہ د نانويسو صحيفو دی    داننده د هر اسرار دي رب ځما
که ظاهر دي که باطن دي که مابين دي    له همه ؤ خبردار دي رب ځما
که پيدا که پوشيده دي که اوسط دی    په همه ؤ وقوف دار دي رب ځما
شريك نه لري په خپلي پادشاهی کښي    بې شريکه شهريار دي رب ځما
هسي نه چه واحدي ده له عجزه    په واحد وجود بسيار دي رب ځما
حاجت نه لري د هيچا و ياري ته    له هغو سره چه يار دي رب ځما
څه حاجت دي چه و بل خوا ته ئې وغواړم    په خپل کور کښي همکنار دي رب ځما
هيڅ تغيير و تبديل نه لري رحمانه    تل تر تله بر قرار دي رب ځما

که صورت د محمد نه وي پيدا    پيدا کړې به خداي نه وه دا دنيا
کل جهان د محمد په روی پيدا شه    محمد دي د تمام جهان آبا
نبوت په محمد باندي تمام شه    نشته پس له محمده انبياء
نور هاله د محمد وُ په جهان کښي    چه بوی نه وُ د آدم او د حوا
په صورت که آخرين دي پيدا شوي    په معني کښي اولين دي له هر چا
خداي يې مه ګڼه بې شکه چه بنده دي    نور ئې کل واړه صفات دي په رښتيا
که نبي دي که ولي دي که عاصي دي    محمد دي د همه واړو پيشوا

چه ئې دين د محمد دي قبول کړي    جنتي دي که فاسق دي که پارسا
محمد د گمرهانو رهنما دي    محمد دي د ړندو د لاس عصا
که رڼا ده پيروي د محمد ده    گڼه نشته په جهان بله رڼا
محمد د بيچاره ؤ چاره گر دي    محمد دی هر دردمند لره دوا
زه رحمان د محمد د در خاکروب يم    که مي خداي نه کا له دي در مجدا

دوباره دي راتله نشته په دنيا    نن دي وار دي که دروغ کړې که رښتيا
هره چار چه تر وقت تيره شي عنقا شي    عنقا نه دي په دام نښتي د هيچا
تر ورخ تيرې اوبه بيرته نه جار وزي    نه جار وزي تير ساعت نه بيرته بيا
تير ساعت په مثال هډي د لحد دي    هر چا نه دي ژوندی کړي په ژړا
که مقصود لرې تلوار کړه وقت کوتاه دي    غره مه شه د دې عمر په بقا
هره نبسه چه صحيح گڼې په زړه کښي    په غرور به هغه نښه کړې خطا
په اميد اميد ئې خلق نا اميد کړه    د ايام له مکره مه شه بې پروا
چه د مرگ په تماچه دي شي خوله ماته    ترو په ماته خوله به څه کوی ثنا
وير ژړلي ارتيدنې چه وينا وايي    تا ته وايي که پوهيږې په وينا
هلك بې ته چه په زور دي څوك تعليم كا    هم عاقل يې هم بالغ يې هم دانا
په عمل د نيکو بدو فهم وکړه    چه په دا کښي دي بهبود دي که په دا
سر دننه په گريوان کړه سترگي روڼي    ډير په پورته پورته مه څه سرهوا
سرهوا سرهوا مه څه و آسمان ته    ته په اصل کښي له زمکي يې پيدا
د عمل په ځاي به دا پوښتنه نه وي    چه ته زوي يې يا نمسي د فلانا
په خپل ځان ښيگړه وکړه غره مه شه    په ښيگړه دا دي او د بابا
هغه ناوې چه په ځان ښايسته وي    څوك يې څه کوي ښايست د مور ونيا
دا خبره زه و ځان ته کړم اې ياره    دلگير مه شه که مي نوم واخيست ستا
نوم د ستا او د بل اخلم ځان ته وايم    نه مي کار نه مي غرض شته په بل چا
که مي ځاي د دې غمونو وي په زړه کښي    ما به څه لره کوله دا انشاء
چه د مرگ سختۍ خوارۍ دا ستا په خوا دي    اې رحمان ولي نه مرې لا پخوا

هوښيار مه ګڼه هوښيار د دې دنيا — بی وقوف دي وقوف دار د دې دنيا
روښنائی په هغو زړونو ده حرامه — چه پرې کښيني ګرد غبار د دې دنيا
پوچ ګوئی ده چه ئې اهل د دنيا کا — هر کلام و هر ګفتار د دې دنيا
د طفلانو په څير واړه خاکبازي کړي — هر چه کاندي کار و بار د دې دنيا
واړه ډکي خولې د پيو هلکان دی — کار ديده و پخته کار د دې دنيا
هميشه به بې وقوف او بې شعور وي — چه مخمور وي په خمار د دې دنيا
د شرابو هم لا همره مستي نه وي — لکه مست وي خمر خوار د دې دنيا
هر بيمار لره د لرو په جهان شته دي — دارو نه لري بيمار د دې دنيا
د هر سوی علاج وشي په جهان کښي — مګر سوی په شرار د دې دنيا
هر چه واچوي و اور ته وار سوځي — موړ به نشي طلبګار د دې دنيا
ګرفتار ئې هميشه په غم کښي ډوب وي — هيڅوک مه شه ګرفتار د دې دنيا
تل به پروت وي په ظلمت و په تور تم کښي — چه اسير وي په ګفتار د دې دنيا
په مسلمو کښي خاصه مسلم هغه دي — چه ئې وشلاوه زنار د دې دنيا
تن ئې پاتي شي بې سره سر ئې لاړ شي — سردار کله دي سردار د دې دنيا
زوی و لوڼه يتيمان کا ځني درومي — بې وفا دي مور و پلار د دې دنيا
هميشه به ئې يو پنډ د غم په سر وي — چه په سر ئې وي دستار د دې دنيا
واړه غم دي که ئې پيری که ئې پلوري — نور څه نشته په بازار د دې دنيا
همګي واړه تګان دي تګي کاندي — فروشنده و خريدار د دې دنيا
په دنيا به مينه نه کاندي هيچري — چه خبر وي په اصرار د دې دنيا
چه نظر د چا په دين و په ايمان وي — هغه نه کا انتظار د دې دنيا
لوی هلک ئې همه واړه مکاران دي — څه ويسا ده په مکار د دې دنيا
آشنايان ئې همه واړه اغياران دي — يار دي چری په ديار د دې دنيا
چه پيدا شي همګی واړه فنا شي — راشه وګوره ناتار د دې دنيا
چه ويريږي له کوهی او له کړنګه — هغه نه درومي په لار د دې دنيا
هر سړی لره چي ورشي ځني درومي — ما ليدلی دي رفتار د دې دنيا
که هزار هزار پشتۍ ورته ته کيږدې — بې بنياده دي ديوار د دې دنيا
که د اوسپنو حصار تر ځان چاپير کړې — ښيښنه وګڼه حصار د دې دنيا
لکه سوری د آفتاب په مخ کښي ګرزي — نشته هيچري قرار د دې دنيا
هيڅ ګمان د بهترۍ ورباندي مه کړه — کهتري ده وار په وار د دې دنيا

بې مقراضه غوڅوي د سړی عمر  هم دا لیل و هم نهار د دې دنیا
پس له مرگه به حساب له سړی غوښت شي  په انداز و په مقدار د دې دنیا
عاقبت خو به یو موټی شي د خاورو  گلعذار و گل رخسار د دې دنیا
برابر به له گدایه سره پاځي  شهزاده و شهریار د دې دنیا
پاس به داغ وي د لئم په ټټر باندي  هر درم و هر دینار د دې دنیا
د قانع تر قناعته صدقه شه  هم دنیا و هم دینار د دې دنیا
پس له مرگه به همه واړه مظلوم وي  ظالمان و ستمگار د دې دنیا
تر قیامته دغه لس او دغه شل دی  پوره نه کړ هیچا شمار د دې دنیا
چه ایام پرې د کفن د غسل ورشي  بې پردې شي پرده دار د دې دنیا
په تخته باندي بیرون شي له حجابه  شرمناک او شرمسار د دې دنیا
له هر چا به پیغمبر څخه وه ډېره  که څه قرب وي یا وقار د دی دنیا
یو فساد به ئې بیان په رحمان نشي  فسادونه دي بسیار د دې دنیا

هیڅ ثابته نه کړه چا د دې دنیا وفا  واړه مینی کاندي بې وفا په دا دنیا
هر څوک چه دعوې په دا دنیا د څپلوئ  واړه باطل وايي دنیا نه ده د هیچا
دا فلک کلال دي سازول او ماتول کا  ډېر ئې ما و تا غوندی پیدا کړه هم فنا
هر سنگ و کلخ چه څرگندیږي د دې دهر  واړه ککرئ دي څوک د شاه څوک د گدا
دام دي هیڅوک نه ږدي د دنیا و رهگذر ته  ښکار به وکړی نه شي د سیمرغ او د عنقا
هر څوک چه له دې فانی نفس وابستگي کا  نه به شي ترلی په زنځیر سره هوا
ماه دي که آفتاب دي عاقبت دي واړه خراب دي  گل که همیشه وي هسی نه تر ابدا
مه درومه رحمانه په خلاف د دانایانو  مینه د دنیا پسندلې نه ده هیڅ دانا

ښه ده ښه ده دا دنیا چه توښه ده د عقبا
مذمت د دنیا مه کړه واوره پند کړه دا وینا
د دنیا په بازار کې بري د هغه جهان سودا
په دنیا کښې ډیر حکمت دي پرې پوهیږي حکما
که تر سر ئې صدقه کړي رفع دفع کړي بلا
که غلیم لره ئې ورکړي غلیم دوست کا په هوا
که په اور باندې ئې کیږدی بوي د عودو وکړي پیدا
که ئې توی کړې په صحل کښې ښایسته کاندي صحرا
که ئې نذر کړې و پیر ته خوشحال درومي په خندا
څو ژوندي وي په دنیا کښې یادوی دي په دعا
د حاتم په خیر دي ستائی خطاب درکړي د سخا
سخی هر دود و دوست د خدای دي ولوکانَ فاَسقأ
هر بخیل د خدای دښمن دي ولوکانَ زاهدأ
دنیا کښت د آخرت دي دا خبره ده رښتیا
د دنیا طالبان ډیر دي که ئې مومي څوک له چا
ولی مرد په کښې هغه دي چه سخي وي هم پارسا
په دنیا کښې بدي نشته که بدي نه وي له تا
دنیا بحر دی بهیري آئینه غوندي صفا
خپل خپل مخ په کښې لیده شي که څوک زشت وي که زیبا
هم خطر په کښې د شر شته هم گوهر دي د بې بها
وفا دار له شوه جفا کار له جفا
له یوه مخه ئې درد وي له بل مخه ئې دوا
چرته خوند کاندي د زهرو چرته خوند کا د حلوا
کار همه واړه موقوف دي د سړی په مدعا
مالکان دی نندارچي شي د خپل ځان په تماشا
هر چه کا هغه به مومي دنیا ځای دي د جزا
لکه دئ هسی به پاخی که نادان وي که دانا
که دانا ئې وپوهیږه په روا په ناروا
فتویٰ ونیسه په مخ کښې پسې متې کړه په تقوا
دنیا نه ده واړه دین دي چه له نهی وي سوا

وطاعت وته ولاړ وي    همیشه ترلي ملا
له حرامو ئې پرهیز وي    مشغول وي په پنج بنا
کلمه ئې وي قبوله    هم په جهر په اخفا
د دنیا دکار دپاره    فرض لمونځ نه کاندي قضا
هم صائم د رمضان وي    هم زکوة کاندي ادا
که ئې توان د حج رسیږي    حج هم وکړي پسې بیا
دا پنځه بنا د دین دی    چه بیان ئې وکړ ما
چه ئې یون په دا طریق وي    هغه کس دي اولیأ
که ئې مال د دنیا ډیر وي    هیڅ دي نه کاندی پروا
دنیا بده د هغو ده    چه ئې کسب وي ریا
یا ئې ټوله کا په ظلم    یا د خمرو په سودا
یا ئې ورکا په شرابو    یا ئې ورکا په زنا
یا ناحق خونونه کاندي    یا مالونه خوري د چا
عبادت کا په ځان فرض    د پادشاه د امرا
حق باطل کا باطل حق کا    په سبب در وي ریا
نه ئې ویره وي له خدایه    نه ئې شرم نه حیا
د یوې ګیډی دپاره    هزار خوني کا بیدیا
همیشه ئې له ستمه    واړه خلق وي په غوغا
ګوش و هوش ئې هرګز نه وي    د مظلومو په ژړا
د فرعون په څیر به ناست وي    بې پروا وکبریا
بتخانې وته ئې مخ وي    و مسجد وته ئې شا
اختلاط کا له بدانو    له نیکانو وي سوا
هیڅ نه وي په خاطر کښې    تولاً و تبرًا
و رحمان ته پیښه مه کړې    خدایه هسې رنګ بلا

هغو بیا موند سعادت په دا دنیا چه ئې وکړ قناعت په دا دنیا
نه ملکونه د سلیمان په هزار کاله نه یوه کړئ طاعت په دا دنیا
یو نفس د خدای په یاد واولیٰ تر دي نه د درست جهان دولت په دا دنیا
په دنیا کښي لوټ هغو عالمو وکړ چه ئی وکړ عبادت په دا دنیا
که نعمت دي خو طاعت او عبادت دي گڼه نشته بل نعمت په دا دنیا
که محنت که مشقت دي خو د دین دي پکار نه دي بل محنت په دا دنیا
بې له خدایه هر چه دي واړه فاني دي که لذت دي که زینت په دا دنیا
که بادشاه وي آخر خاورو له به درومي څه عزت دي څه حرمت په دا دنیا
له هغه به زیات نادان په جهان نه وي هر چه غواړي فراغت په دا دنیا
ته چه څو وقته فرصت په دنیا غواړې چا موندلي دي فرصت په دا دنیا
عمارت په سر د ریگ روان کاندي هر چه کاندي عمارت په دا دنیا
د مستانو تر لغزشه څه کم نه وي د سړی استقامت په دا دنیا
هر ژوندی چه د مرده په قبر ورشي بس دي همره نصیحت په دا دنیا
په روانو اوبو ورشه عمر گوره ډیر دي همره اشارت په دا دنیا
دا پاخه پاخه سرایونه محلونه خو به وران شي عاقبت په دا دنیا
وری سترگي د آسمان څه هسي نه دي چه څوک پریږدي سلامت په دا دنیا
هر چه راشي همه واړه ځنی درومي مسافر دي هر صورت په دا دنیا
ریاضت په قیامت نه شي مرد هغه دیي چه ئې وکړ ریاضت په دا دنیا
هم په دا خوي و خصلت به سبا پاڅي خدای څوک مه کړه بد خصلت په دا دنیا
هم هغه به ئې خرمن وي پس له مرگه هر چه کاندی زراعت په دا دنیا
که هغه جهان په دا کښي لیدي نه شي زه ئې وینم علامت په دا دنیا
په قیامت به ښه توښه ځپله نه شي ما لیدلی دی قیامت په دا دنیا
امانت به د لحد په میان کښي پروت وي هر چه اوسي امانت په دا دنیا
نیک عمل حضور جنت دي طاعت بویه چه حاصل کا څوک جنت په دا دنیا
نیک کردار هم نیک عمل هم نیک خویونه هم جنّت دي هم راحت په دا دنیا
ضدیّت د سړی عمر په عذاب کا پکار ندي ضدیت په دا دنیا

لاس په سر په سینه ایښي و هر چا ته     هم دغه دي شرافت په دا دنیا
که بلنده مرتبه د چا پکار وی     لوی مقام دي عدالت په دا دنیا
بل ارمان به له جهانه یووړ نه شي     مګر مهر، محبت په دا دنیا
د هغه جهان سودا واړه دلې ده     که څوک کاندی تجارت په دا دنیا
که طالع د سړی نه وي جار وتلي     هیڅ پټ نه دي حقیقت په دا دنیا
نیک له نیکو سره بویه بد له بدو     که څوک غواړي ولایت په دا دنیا
ولایت دی خدای هغو لره ورکړي     چه ئې ورک کړ سکونت په دا دنیا
که تمام دنیا واړه سره یو شي     نور به نه کا خپل قسمت په دا دنیا
که څوک مرد دي خو هغه دي په دنیا کښي     هر چه نه لری حاجت په دا دنیا
په رحمان باندي دا عمر هسي تیر شه     لکه تیر شي یو ساعت په دا دنیا

راشه مه کوه له چا سره جفا     لږ ژوندون دي ضایع کیږي بی وفا
په دنیا کښي هیڅوک نه دي پاتي شوني     واړه تلونی دي که نن دي که سبا
دا یاران چه نن و تا ته جلو کا     په دوه ورځي پس په واړه شي فنا
که دیدن د دوی دي خوښ وي ورته ګوره     چه فنا شي بیا به کله شي پیدا
د خزان پای چه بیل شي له ښاخه     په حکمت به ئې پیوند نه کا حکما
چه په زمکه څاڅکي پریوزی له آسمانه     بیا له زمکی ختی نه شي په سما
ګمان مه کړه چه بیا سترګو لره در شي     هغه اوښی چه له سترګو شي جدا
دا په هره ورځ چه خیژی بیل بیل نمر دي     هر چه پریوزي هغه نه شي ختي بیا
که جنت په زهد نه دي بې له فضله     هر سړی دي خپله غاړه کړي ادا
که د نس دپاره سل محنته وکړې     یو محنت به دي پکار نه شي فردا
که تمام جهان په خپله ګیډه وخورې     یاد به نه شي په درود او په دعا
که یوه دانه دوړی په لاس ورکړې     هم دغه به دي توښه شي د عقبا
که یو څاڅکي اوبه تږي لره ورکړې     د دوږخ او ستا تر مینځ به شی دریا
که یوه ځله سر د خدای دپاره ټیټ کړې     په قیامت به سر بلند شې له هر چا
بازار دا دي که څوک سود و سودا کاندي     په هغه جهان نه سود شته نه سودا
آشنایان که څوک پوهیږی نن ئې وقت دي     چه ځاریږي یو آشنا تر بل آشنا
که ژوندون دي خو هم دا دي په جهان کښي     چه له چا سره تیریږې په خندا

سود و زیان د دنیا واړه سهل کار دي خداي دي نه کا ځوک په سهل کار رسوا
چه د ورور او عزیز زړه پرې آزار شي حاصل مه شه هغه خپله مدعا
کله د نورو رضا بویه ګاهي خپله په کار نه ده همیشه خپله رضا
ښه خواږه چه یو ئې خوري بل ورته ګوري خواږه نه دي هغه زهر دي ګویا
چه ښادی ئې یو زمان وي غم تر تله دغه هسي چاري نه کاندی دانا
لکه ځان هسي و بل وته نظر کړه لکه ستا دي هسي ځان دي د هر چا
منصفانو لره بویه چه انصاف کړي نه چه نغوته کا د حرص و د هوا
د سړی په خاطر هر څه هر څه ګرزي هسي نه چه واړه وګني روا
دینداران دي و خپل دین وته نظر کا ځوک فکرونه د صواب ځوک د خطا
خدای دي نه کاندي خطا د چا له لاسه څه نسبت دي د خطا او د عطا
هسی نه چه سړی واړه سره سم دي ځوک اعلیٰ دي ځوک اوسط دي ځوک ادنا
د هر چا حرمت په خپله اندازه دی نه چه مومي نفر ځاي د امرا
زه رحمان له چا شکوه شکایت نه کړم نشته بل دوست و دښمن ځما بې تا

که ځوک یار په جهان غواړی یار دي دا یار دي دا که د جهان سنګار دي دا
خیال د زلفو ئې ځما تر زړه چاپیر شه یار تر ګنجه چاپیر شوي مار دي دا
دا جهان دی خداي له عشقه پیدا کړي د جمله ؤ مخلوقاتو پلار دي دا
تر عشق غوره بل څه کار په جهان نشته تر همه کارونو غوره کار دي دا
بل بلبل به د ګل نوم اخیستي نه و که خبر وي چه ګل نه دي خار دي دا
بیا راتله دي دې جهان ته بل وار نشته بل وار نشته بل وار نشته وار دي دا
د حباب عمر دي وګوري چه څه دي که ځوک شمار کاندی د عمر شمار دي دا
د مجنون صورة په زړه کړه رحمان ګوره ستا په عشق کښې هسي خوار و زار دي دا

چه له تا سره په سر کاندی سودا — بل به نه وی هسي ما غوندی شیدا
نه به ما غوندي شیدا وي په جهان کښي — نه به تا غوندي دلبر شي بل پیدا
ما دا ستا جور و جفا دي قبول کړې — ولي نشي د ژړا په ځاي خندا
بې د ستا له مخه کون دي که مکان دي — ښه توبه مي نه په دا شي نه په دا
جدائې به دي هیڅ رنگ قبول نه کړم — څو مي نه دی روح کالبوت سره جدا
لکه ورستو مقتدیان وړاندی امام وی — ما په تا پسې ده کړې اقتدا
زه یو نه یم درست جهان په تا مین دي — که بادشاه دي د دې دهر که گدا
کاشکی خط د امانۍ و ما له را کړې — چه له ما سره وعده کړې د فردا
زه پخپله په تا نه یم مین شوي — ستا له لوری په ما شوې ده ندا
زه په تا باندي مین یم له ازله — نه چه کړې می نن ورځ ده ابتدا
چه د ستا د عاشقۍ په تیغ شهید شي — د رحمان غاړه به هله شي ادا
د رحمان و زیړي رنگ وته نظر کړه — چه مدام په تا پسې کاندي ژړا

که مین یې په خپل یار باندي رښتیا — آواره کړه اول دین پسې دنیا
په وفا د دلبرانو غلط مه شه — دغه قوم دي بې وفا و کبریا
د خوبانو طایفه ده هسي شوخه — چه غوږ نه باسي د چا په واویلا
د ډیر ناز او د ډیر کبر له سببه — عمل نه کا په گفتار د اولیا
دل و دین په یو نگاه د سړي یوسي — نه یې ویر له چا کیږي نه حیا
بل به هسی سرگردان په جهان نه وي — یا عاشق دي یا آسمان دي یا آسیا
ته چه ژغورې سر و مال په عاشقۍ کښي — عاشقي دا هسي چري ده ویړیا
د جنت له حورو تیر شه که یار غواړې — خدای دي نقد د چا و نه کاندی نستیا
د ساقی له لاسه هسي پیاله نوش کړه — چه دي غوځ کا له زړه خیري د ریا
چه ئې کسب عاشقي شوه د دلبرو — نظر نه کاندی په کسب د کیمیا
یو گفتار ورلره بس کانده رحمانه — څه به هر ساعت پوښتنه کړې بیا بیا

عاشقي مي ئې په زړه وکړ گذر بیا    بیلتانه مي لنبې بلې کړې په سر بیا
که دفتر د خپل قسمت مې په خپل لاس وی    ما به ستا له غمه وران کړ دا دفتر بیا
ما لا نوم د عاشقۍ آخستي نه و    جدايۍ دي راته جمع کړ لښکر بیا
پس له مرگه به ئې بیا له تا قربان کړم    که صورت مي خدای پیدا کړ په محشر بیا
د هجران محنت مي واړه له زړه هېر شه    چه مي ولیده په سترگو ستا بشر بیا
چه آسمان ئې مخ پټ کړي په سحاب و    خدای و ما وته ښکاره کړ هغه نمر بیا
چه رقیب راته تړلي په زنځیر و    خپل حبیب را باندي پرانیت هغه در بیا
په یوه نظر ئې زړه را څخه یووړ    خدای دي خیر کا چه لا وکړي بل نظر بیا
په وصال ئې منت بار اوسه رحمانه    په صدف کښې دخل نشته د گوهر بیا

ته چه ما ته وایې چه په څه کوې ژړا    نه در معلومیږي دغه خپل جور و جفا
ته جور و جفا کړې زه ژړا کوم دلبره    ستا که دغه نه وي دا به هم نه وه ځما
څه ښادی به کاندي طائفه د عاشقانو    رسم د بتانو که هم دا وي لکه ستا
دا خصلت چه ستا دي که هم تل دغه شان وي    نه را معلومیږي د دردمند د زړه دوا
یو د ستا مانۍ شه بل غرور د رقیبانو    وار په وار مي وژني کله هغه کله دا
هر چه عاشقي کا که په قطع افلاتون وي    زه خو ئی مجنون گڼم که نن وي که سبا
سپی هم په عذاب د جدايۍ د وژلو نه دي    زه خو گوندي ستا د کوڅې سپی شوم په وینا
هیڅ ئې په کار نه دي رحمان تا غواړي دلبره    دا ځما رضا ده باقي هر چه ستا رضا

چه ئې نقش په زړه خیال شي د آشنا    صدقه ئې سر و مال شي د آشنا
پس له مرگه به ئې تیغ هسي مخ روڼ وي    چه آشنا په تیغ حلال شي د آشنا
په آسمان د آشنائي به ئې مکان وي    چه زمین غوندي پایمال شي د آشنا
خوشحالي ځما د زړه په هغه دم وي    په هر دم چه زړه خوشحال شي د آشنا
روح هغه ساعت داخل گڼم په تن کښې    چه ئې دخل په وصال شي د آشنا
نور د هیچا قیل و قال می پکار نه دي    چه تر غوږ مې قیل و قال شی د آشنا
هم هغه یوه گړۍ را باندي کال وي    چه یوه گړۍ محال شي د آشنا
زرغونه کاندي دانه زما د عیش    چه په زړه مي زرغون خیال د آشنا
نه بل څوک ځما طبیب بې آشنا شته دي    نه به بل څوک په مثال شي د اشنا
د رحمان نظر په هیچا باندي نه وي    چه نظر ئې په جمال شي د آشنا

دل و دین می په هغه ترک کړه فدا — لا ئې نه حسابوي د ځان بها
د ښایست صفت ئې څو کوم حیران یم — په هیڅ شان ئې موندی نه شي انتها
د صورت له عیبه هسي پاکیزه دي — لکه ذات د ویښته نشته دي په ها
که ئې مخ په زلفو پټ وي باک ئې نشته — تل به گنج باندي پراته وي اژدها
لکه نمر هسي جلو کا په شفق کښي — چه په سر کاندي اودنړی د سوها
نه پوهیږم چه په کومه لاره درومم — چپ و راست مي رقیبان دي هزارها
خدای دي هسی تنها نه کا څوک په غم کښي — لکه زه د یار په غم کښي یم تنها
همیشه د بیلتانه له غمه لولم — زه رحمان نعوذ باللّٰه منها

ډېره شوه د یار پسې ژړا ځما — نه گروهیږي په ژړا آشنا ځما
که مي هره وینا در شي یا گوهر شي — ستا د غوږ نه ده لائق وینا ځما
په نارو به ما بیدار کړ که اوده وي — راته ویښ اوده شه دلربا ځما
زه مکتوب غوندي په پټه خوله گویا یم — لاندي کړله خاموشي غوغا ځما
کښت د عشق په توده زمکه آسان نه دي — سمندر بویه په دې صحرا ځما
دا یار نه دي چه هجران له ما نه بیل کړ — دغه روح له تنه شه جدا ځما
زه رحمان بې خپله یاره هیڅ نه غواړم — که قبوله خدای ته وي دعا ځما

عالمان دي روښنائي د دې دنیا — عالمان دي د تمام جهان پیشوا
که څوک لار غواړي و خدای هم و رسول ته — عالمان دي د دې لاري رهنما
کیمیا گر که د کیمیا په طلب گرزی — همدمي د عالمانو ده کیمیا
په مجلس د عالمانو به سره زر شي — که څوک کاڼي وي یا لوټه د صحرا
جاهلان دي په مثال د مردگانو — عالمان دي په مثال د مسیحا
چه مرده ئې له نفسه ژوندي کیږي — عالمان دي واړه هسي اولیا
هر سړی چه رتبه نه لري د علم — سړی نه دي خالی نقش دي گویا
زه رحمان حلقه بگوش د هر عالم یم — که اعلیٰ دي که اوسط دي که ادنا

چه واده ئې کا په ډول او په سرنا    بیا پرې وایي زمانه د ویر وینا
که مي هر څو دلبري او دلجوئي کا    زه پوهیږم د خپل یار په استغنا
په یوه ګړۍ می یار هم مي آشنا شي    بیا مي بله ګړۍ نه ګڼي آشنا
دا زه خپله تسلي کړم یار ئې بولم    څه یاري ده د ناتوان او د توانا
یو زمان و یو دم بې خپله صنمه    زه بهتره تر بقا ګڼم فنا
هر سړی په یوې چاري خدای مشغول کړ    زه مشغول کړم رب د ترکو په ثنا
ما بې عشقه بل هنر نه زده ناصحه    بخښنده شه که نادان یم که دانا
چه مي غوږ په نارو نه باسي حیران یم    پروا نه لري واړه دي که برنا
بې د یار له ښه دیدنه دي خدای نه کا    د رحمان په زړه کښې بله تمنا

دا دنیا د بې وفا    بې وفا ده بې بقا
نه ئې مخ شته نه ئې څټ شته    لکه لوټه د صحرا
په یوه ګړۍ ئې مخ وي    په یوه ګړۍ ئې شا
په یوه ګړۍ د ستا وي    په یوه ګړۍ ځما
په یوه ګړۍ ئې درد وي    په یوه ګړۍ دوا
په یوه ګړۍ ئې خوف وي    په یوه ګړۍ رجا
په ساعت کښې بقا وي    په ساعت کښی ئې فنا
په ساعت کښې ئې سکوت وي    په ساعت کښې ئې غوغا
په ساعت کښې ئې خندا وي    په ساعت کښې ئې ژړا
په ساعت کښی ئې وفا وي    په ساعت کښې ئې جفا
په ساعت کښې ئې افلاس وي    په ساعت کښې ئې غنا
چه نه شان لري نه شکل    کله دا شي کله دا
خدای څوک پې نښ مه کړه رحمانه    په دا هسي رنګ بلا

په ښادۍ ښاد شوي نه يم د هيچا  تور تپ سوي يم په غم د هر آشنا
که زه طمع توقع له بله نه کړم  د بل طمع توقع کيږي له ما
که مي وروركه مي عزيز كه مي فرزند دي  واړه غواړي خپله خپله مدعا
په هر کور کښي رنځوران راته پراته دي  لاس مي نه رسي د هيچا په دوا
د دنيا خبري واړه په دنيا شي  ما به څه کا څوک چه نه لرم دنيا
که په کلي کښي مي کور دي زه گمان کړم  چه کور نه دي دا مي گور دي په صحرا
چه څه کار پرې نه پوره وي نه نيمگړي  څوک به څه کا له هغو سره خندا
چه ځې ښه توښه و بله سره نشي  تر هغه آشنا بهتر دي نا آشنا
په توده زمکه استوگنه ده مشکله  څه به زيست شي له رحمان سره د چا

که خپل زړه غواړې له چا  ځان صياد کړه د عنقا
د حباب کلاه په سر کړه  سپور په آس شه د هوا
لکه حضر هسې پاخه  اوبه وڅښه د بقا
له زمينه قدم کيږده  په آسمان لکه عيسٰا
د هغه استاد شاگرد شه  چه در وښيي کيميا
دا چه ما درته بيان کړه  که حاصل کړې واړه دا
هاله طمع کړه رحمانه  له خوبانو د وفا

که نماښام تر ستوني ښکته کړې حلوا  سبا خواست کوې له خدايه د ښوروا
په هيڅ حال کښي دي قرار و صبر نه شي  ليونی کړې ډير حرص ډيري هوا
تمام عمر تر آشنا تر عزيز پوري  يوې گيډې مختورن کړې هم رسوا
چه په خپلي رسوايۍ دي پروا نشته  نور به څه کړې په جهان د چا پروا
چه د نفس دپاره لاس و چا ته نيسې  دا زحمت له خدايه غواړې که دوا
نفس بې شماره عالم پرې يست و کوهي ته  خدای دي نه کا نابينا د چا پيشوا
په روا په ناروا کله پوهيږي  و چارپای ته څه روا څه ناروا
چارپايان که غوږ و سترگي لري څه شو  په معنیٰ کښي نابينا دي ناشنوا
زه رحمان له هغه علمه پناه غواړم  چه له دينه له مذهبه وي سوا

سل ځله که وخوري ناصحان ځګر ځما    بيل به وبله نه کا درد ستا و سر ځما
صبر ستا په عشق کښي دا خبره څه اوره څوک    نشته د دې چاري توان يو موي قدر ځما
ستا له محبته جارواته ځما دروغ دي    ولي خاوري نه شي په دا لار بشر ځما
واړه معشوقې د عاشقانو خبر اخلی    بې له تا چه نه اخلې يو دم خبر ځما
هيڅ اندوه مي نشته بې د ستا له جدائيه    نور اندوه به څه وي تر دغه بتر ځما
خوب د کور و کلي په نارو ځما برهم شه    څه چل دي چه نه شي ستا په زړه اثر ځما
کل واړه جهان که ما رحمان لره دلبر شي    چري دي دلبره بې تا بل دلبر ځما

هسي ياد يې هميشه مدام ځما    چه اوراد يې په هر صبح و شام ځما
هر کلام چه بې د ستا له ياده وکړم    سل توبې دي په هغه کلام ځما
بې له تا که زه آرام کړم په سل رنګه    نه شي نه شي په هيڅ رنګ آرام ځما
ننګ و نام که ستا په مينه له ما درومي    زار شه ستا تر ميني ننګ و نام ځما
چه قايم شوم په مقام د عاشقۍ    هير شه دلته واړه بل مقام ځما
څو د عشق په خمخانه ئې داخل نه کړم    پخته نه دي دغه عقل خام ځما
نن دي وقت دي که مي آه و فرياد اورې    څو چه خاوري نه دي هر اندام ځما
هزار جام و صراحی دې فلک مات کړه    څو به ګرزي په دا دور جام ځما
زه رحمان به دا ناکام کوم تر کومه    وايه کله به حاصل شي کام ځما

چه هر چا ليدلي نه وي يار ځما    خير دي دا که وايي بد په کار ځما
هر هغه چه وي دلبر ځما ليدلي    نه به کا انشاءاللّٰه انکار ځما
سر ځما درګاه د هغه يار عزيز وي    بې له دې نه شته بله لار ځما
ما بې له عشقه بل څه څيز نه دي زده کړي    چه څه دي هم دا دي واړه کار ځما
خدای دي يو له بله هيڅوک آزار نه کا    اي دلبره ماخله ته آزار ځما
ياره ستا په جدايۍ او په ډېر غم کښي    سيند د اوښو درومي په رخسار ځما
لوي هلک کړي همه واړه ستا خبريي    ګفت و ګو نشته بل څه په ديار ځما
زه رحمان به لاف په عشق څه وهمه    خود به ځان ځرګند کا انتظار ځما

سر ځما سامان ځما ځار شه تر جانان ځما ځار شه تر جانان ځما سر ځما سامان ځما
ریان ځما نقصان ځما واړه د یار هجر دي واړه د یار هجر دي زیارن ځما نقصان ځما
مښک ځما زعفران ځما ستا د کوځې خاوری دي ستا د کوځی خاوري دي مښک ځما زعفران ځما
گل ځما ریحان ځما ستا رخسار و زلفي دي ستا رخسار و زلفی دی گل ځما ریحان ځما
فکر ځما توان ځما ستا په غم کښې نه رسي ستا په غم کښې نه رسي فکر ځما توان ځما
آه ځما افغان ځما هیڅ په تا اثر نه کا هیڅ په تا اثر نه کا آه ځما افغان ځما
زړه ځما چشمان ځما بې له تا هیڅ حال نه لري بې له تا هیڅ حال نه لري زړه ځما چشمان ځما
دا پیران شیخان ځما ستا په غم کښې نه رسي ستا په غم کښې نه رسي دا پیران شیخان ځما
باغ ځما بستان ځما بې تا میوه نه نیسي بې تا میوه نه نسي باغ ځما بستان ځما
وصل هم هجران ځما اې رحمانه خیر دي اې رحمانه خیر دي وصل هم هجران ځما

بادشاهی لري هر یو غلام د ستا د خاصانو په ځای ناست وي عام د ستا
پخته کله دی چه لاف د پختگۍ کا پختگان دي په دې خم کښې خام د ستا
خو هم همره ئې نظر په ننگ و نام وي چا چه نه وي اوریدلي نام د ستا
همیشه به له مقامه بې مقام وي هغه څوک چه لټوي مقام د ستا
چه په خپلو وینو گل غوندي غرق نه وي و به نه ویني رخسار گلفام د ستا
صبح و شام په هغو خلقو باندي یو وي چه آرزو لري هر صبح و شام د ستا
بل کلام ئې په زړه کله اثر کاندي چه تر غوږ ئې شي شیرین کلام د ستا
فراموش کاندی همه نوري مستۍ هر چه نوش کاندي باده په جام د ستا
دام د ستا د تورو زلفو عالم گیر دي تنها نه یم نښتی زه په دام د ستا
زه رحمان دعا سلام په هغو وایم هر چه ما لره راوړي سلام ستا

هر چه ووینې په سترگو روي د ستا    مخ ئې کوږ وي همیشه په سوي د ستا
بې دماغه په تر سر و تر مال تیر شي    چه یې تیر شي تر دماغه بوي د ستا
که لوئي کړې څه بې ځایه خو ئې نه کړې    چه په دا رنگه قامت دي لوي د ستا
نو بهار دي عالم سیر د بوستان کاندي    خدای و ما و نه بوستان کړ کوي د ستا
د عیسیٰ له دمه دم وهلي نشم    چه خوله بیرته شي په گفت و گوي د ستا
هم په دا مي له چشمانو رود بهیږی    چه یادیږي مي قامت دل جوي د ستا
همیشه ئې زړه په اور باندی سپند وي    و هغو ته چه څرگند شي خوي د ستا
د لړم لاشه ئې ما ته وي په زړه کښې    چه ئې نقش وي په زړه آبرو وي د ستا
و زنځیر وته ئی څه لره را کاږې    لیونیو لره بس دي موي د ستا
و گړنگ وته پخپله ځان پرې باسي    چه و زړه وته پرې باسي روي د ستا
که ته سل ځله ځما ئې زه د ستا یم    تلوني نه دي له ما جست و جوي د ستا
گل لنبه شه د بلبل په آه رحمانه!    نه گروهیږي یار په هاي و هوي د ستا

خوی که په دا شان وي دل آزار ستا    څه ښادي به کاندي طلب گار ستا
حیف چه اوریدي شي لیدی نه شي    حسن و لطافت پرې وار ستا
بیا دوباره نه گوري و بل ته    هر چا چه لیدلي دي رخسار ستا
خدای زده چه ته یار د کوم یوه ئې    هر طرف یاران دي صد هزار ستا
ځاي د پښو ایښودو مونده نه شي    همره عاشقان دي په دربار ستا
بل به هسي نه وي که خدای کاندي    ما غوندي خاکسار و هوادار ستا
بل گمان په ما باندي و مه کړه    عمر واړه زه و انتظار ستا
عشق له حُسنه حسن دي له عشق    ته نگار ځما یې زه نگار ستا
ته ځما مطلوب یې زه طالب یم    ته ځما طبیب یې زه بیمار ستا
ته که تازه گل د نو بهار یې    زه یم عندلیب په لاله زار ستا
جور دي که جفا ده که ستم دي    واړه مي منلي دي یک بار ستا
جور و جفا ځوک په بها پلوري    زه یم د جورونو خریدار ستا
یو تار که ضایع شي ستا د زلفو    ځان به صدقه کړه په هر تار ستا
سل ازمیښتونه دي را وکړه    حیف دي چه لا نه شي اعتبار ستا
تیر یم زه رحمان له هره کاره    اوس مي ملا تړلې ده په کار ستا

ستا په څير نه دي خوبان ليدلي ما — نه په غوږو چري اوريدلي ما
هيڅ وفا له عاشقانو سره نه کا — دلبران دي واړه ازمايلي ما
چه مي ستا و ښکلي مخ ته دي کتلي — بل يو مخ ته نه دي بيا کتلي ما
د زړه غولي مي نيولي ستا غمونو — نور غمونه نه دي له زړه ويستلي ما
چه مي کار د عاشقی په لاس کښې واخيست — دي له بله کاره لاس وکښلي ما
نور غمونه مي له زړه نه دي وتلي — ستا غمونه په کښې دي کرلي ما
زه رحمان بې ياره خوب و خندان نه کړم — بې ده نه ده خوب خندا پسندلي ما

چه اميد په عمارت د دې دنيا کا — د کاغذ په کشتي سير د دريا کا
د آسمان توسن هيچا نه دي تېرلي — څوک به څه زنگ سورلي د باد په شا کا
نه ليوه په آدميت آموخته کيږي — نه اميد د مروت شي له افلا کا
له فلکه د وفا اميد باطل دي — کله ديو له آدم زاد سره وفا کا
زمانه په اسلام کفر سمه گرزی — فرق د تور و د سپين کله نابينا کا
فما د دهر علامت په سترگو وليد — په هر دم هزار پيدا هزار فنا کا
هيڅ اميد مي د ايام په گردش نه شي — چه فرصت به په خپل دور و مارا کا
په خپل عمر به هيچا ليدلي نه وي — هغه چاري چه دي هر ساعت په ما کا
که د گلو غنچه کيږدم په دستار کښې — شوم طالع مي هلته خار ځني پيدا کا
که وزورو وته لاس کړم خاوري کيږي — که د خاورو په آرزو شم استغنا کا
جدائي د خدای بلا شوه نه نتوانيږم — خوشي زړه مي په ديدن پسی ژړا کا
همره صبر دي عاشق څخه له کومه — چه د نن وعده موقوفه په فردا کا
که د اور جامه را واغوندې دلبره — په نظر ځما جلوه لکه ديبا کا
په خپل عشق کښې که څوک بد را باندي وايي — زه گمان کړم چه همه ځما ثنا کا
ملامت په عاشق ښائي دا دستور دي — چه روغ خلق په رنځور پوري خندا کا
عاشقي ننگ و ناموس دي وبله لري — په روښانه ورځ به څه رنگ څوک غلام کا
که زه طمع کړم د گلو له طالع نه — ما عاجز لره د گل په ځاي خار را کا
که زه ځان ژغورم په عشق کښې له عالمه — زمانه مي په جهان باندي رسوا کا
هميشه به په عالم کښې وي سرخ رويه — چه ثنا لکه بلبل د خپل آشنا کا
دا ځواب رحمان هغه کا چه دولت وي — که دلبر د ديدن مي پياپي را کا

هر چه ستا کوځه ماوا کا ‌ ځای ئې بر شي تر افلاک کا
ځان هاله ورته بادشاه شي ‌ چه ئې ستا د درگدا کا
چه د ستا د درگدا شي ‌ بادشاهئ وته نور شا کا
نظر بې د ستا له رویه ‌ نه په ارض نه په سما کا
مینه بې د ستا له مخه ‌ نه په دین نه په دنیا کا
ستا په مهر و محبت کښي ‌ ځان جهان واړه فنا کا
د دنیا کورو وگړي ‌ ستا په مینه کښي تالاک کا
رضا ستا په رضا کیږدي ‌ ترکه خپله مدعا کا
و هر خوا ته چه ستا مخ شي ‌ دي هم مخ په هغه خوا کا
چه له چا سره جفا کړي ‌ له هغه سره جفا کا
که له چا سره وفا کړي ‌ له هغه سره وفا کا
که په عمر چري خاندي ‌ خوله تا سره خندا کا
که په عمر چري ژاړي ‌ خو په تا پسې ژړا کا
که مطلب ئې د دیدار وي ‌ ستا په ذکر مشغولا کا
د رښتینو مقام دا دي ‌ که څوک مینه په رښتیا کا
عاشقان په عاشقي کښي ‌ چه رحمان وایي هم دا کا

هسی نه چه ځما یار واړه جفا کا ‌ صد چندان لکه جفا همره وفا کا
لکه زه چه په خپل یار باندي مین یم ‌ یو په سله همره مینه یار په ما کا
زړه ئې وړي په احسان دي نه په جور ‌ مجنون ځکه په لیلي پسي ژړا کا
درست جهان د خوبرویانو ناز بردار دي ‌ نه یوازي دغه ناز په ما و تا کا
نه به گوري رحمان څشکل هغه مخ ته ‌ فرښتې چه ئې د حسن تماشا کا

هغه ژوي چه مین وي څه به خوب کا ‌ چه فرهاد غوندي کوهکن وي څه به خوب کا
هر نفس د سړي تله دي له جهانه ‌ چه ئې هر نفس رفتن وي څه به خوب کا
چه سبا له خپله یاره جدا کیږي ‌ که د سلو شپو کړمن وي څه به خوب کا
عاشقي ده خدای له اوره پیدا کړې ‌ چه په اور کښي ئې وطن وي څه به خوب کا
د رقیب له جوره خوب د عاشق نه شي ‌ د هغو چه یار دښمن وي څه به خوب کا
خوب خندا په بې غمۍ کیږي رحمانه ‌ هر چه تا غوندي غمجن وي څه به خوب کا

چه په سترگو کښې ئې خار وي څه به خوب کا    چه په زړه ئې غم د یار وي څه به خوب کا
خوب له یاره سره هم د عاشق نه شي    چه ئې یار په بل دیار وي څه به خوب کا
په دنیا کښې خوب هغه کا چه نادان وي    هغه ژوي چه هوښیار وي څه به خوب کا
کوم طالب مطلوب موندلي دي په خوب کښې    هغه څوک چه طلبگار وي څه به خوب کا
دیدار نه دي چا په پټو سترگي کړي    چه مطلب د چا دیدار وي څه به خوب کا
بله لار د مرگ له لاري گرانه نشته    چه په خوا ئې هسي لار وي څه به خوب کا
هر نگاه د دلبرانو ذوالفقار دي    هر چه غوځ په ذوالفقار وي څه به خوب کا
زه رحمان د یار بنده و خدمتگار یم    چه بنده و خدمتگار وي څه به خوب کا

هغه ژوی چه بې خدایه محبت کا    همگي واړه بې ځایه محبت کا
محبت بې خدایه واړه د زړه رنځ دي    که مدام له چنگ و نایه محبت کا
خر خاري ده چه ئې یو له بله کاندي    هر خود راي چه له خود رایه محبت کا
نتیجه ئې ریش کنده جامه پاره وي    آدم زاد چه له چارپایه محبت کا
هغه سراي لره به تله ور باندي گران وي    هر سړی چه له دې سرایه محبت کا
بلهوس به نه پتنگ و پروانه شی    د مگس په څیر له ورایه محبت کا
چه د تورو زلفو سوزیدي چا وشي    هغه کله له همایه محبت کا
رحمان ځکه د ریبار متابعت کا    چه رهروله رهنمایه محبت کا

اورنگ زیب چه آرایش د تخت و تاج کا    تخت و تاج به ئې مرگي تاخت و تاج کا
به جهان کښې به ئې پاتي ښه بد نوم شي    که دي چاري د کسریٰ او د حجاج کا
اوبه سترگو لره لاړې اور د زړه شه    څوک به څشکله ژوندون په دا مزاج کا
جدائي ځما په زړه کا هسي چاري    لکه باز چه په تارو او په دراج کا
ځما اوښې چه پیدا د زړه له ریم شوې    لکه اور چه له کبابه نم اخراج کا
زه غمجن د عید په جشن خبر نه شوم    که نور خلق هاي و هوي ته احتیاج کا
هر ناوک چه د قضا له شسته خیژي    زمانه د رحمان زړه ورته اماج کا

ورځ چه بده شي عاقل او دانا څه کا — چه قضا شي ورد و څار حکما څه کا
مور و پلار خو نیک فرزند له خدایه غواړي — چه بد بخت شی ادې څه که بابا څه کا
یار له یاره په لوی لاس کله بېلېږییپه ښیر و په دعا — چه لاس نه رسي یار څه که آشنا څه کا
څه شي کړوني خداي دي — چه خدای نه کا ښېرې څه که دعا څه کا
بخت په زور و په زر نه دي چا خپل کړي — په دا کار کښي ناتوان څه که توانا څه کا
ای رحمانه پتنگ عذر شه چه وسه — نور د شمع خندا څه که ژړا څه کا

د بې دردو همدمي به دي بې درد کا — د نامردو همدمي به دي نامرد کا
صحبت بې تاثیره نه دي دا حدیث دي — گنگو نمري هم په څیر د گنگو زرد کا
هر کالي چه څوک په زمکه باندي کیږدي — هغه زمکه ئې له جنسه د خپل گرد کا
په مجلس د ویر ژړلیو څوک ور مه شه — که صحیح که سلامت وي آه سرد کا
چه دوئی له میانه لري شي رحمانه — معشوقه عاشق پخپله ناز پرورد کا

که په گنج د شاهۍ فخر شهریار کا — عاشقان ئې د دلبرو په رخسار کا
خرقه پوشه په خرقه کښي دي موندلي — هغه خط چه په دنیا کښي دنیا دار کا
پتنگانو لره خدای ورکړه په اور کښي — هغه عیش چه ئې بلبلی په گلزار کا
نیک ساعت په بد بدل د هیچا مه شه — په وصال کښي غم د هجر ورد و څار کا
نس د گور و د مور یو دي په معنیٰ کښي — خو په چا ئې تور لحد په چا بازار کا
د بېړۍ په ډوبیدو چه رب راضي شي — بیا ملاح د زړونو کله هلته کار کا
هغه مخ چه مادر زاد ښایسته نه وي — مشقت د مشاطې واړه مردار کا
یار د ناز له خوبه پاڅې پسي گرزي — چه فلک د عاشقانو بخت بیدار کا
نیمي شپې ئې یار تر سره پوري کښیني — لکه شمع چه څوک بله په مزار کا
د مستۍ د هوښیارۍ یون څرگند وي — په هر چا کښي چه څه وي هسي رفتار کا
د بلبلو نغمه زاغ کولي نشي — هر سرود آواز په طور د خپل کار کا
رحمان هسي بې وقوف سوداگر نه دي — چه د دین متاع بدله په دینا کا

که سړی د خپلي پوهي تقصیر نه کا　　د خدای کړه به څوک په پوهه تغیر نه کا
خواه مخواه به د تقدیر شوی ور پیښ شي　　که څوک هیچري نظر په تقدیر نه کا
د هغو چه بخت بیدار وي غم ئې نشته　　که هیچري بیداري و شبگیر نه کا
دا له خپلي کم پوهۍ مونږه څه وایو　　چه فلاني سړی تالاش و تدبیر نه کا
دلگیري او خوشحالي که په خپل لاس وي　　په خپل لاس به خپسر هیڅوک دلگیر نه کا
معرفت د خدای څرگند دي په هر څه کښي　　سترگي وخوره چه څوک همره نظیر نه کا
دا نفس په مثال برق صورت فانوس دي　　برق به هیڅوک په فانوس کښي اسیر نه کا
د دنیا سړی همه واړه درماند دي　　کوم بادشاه دي چه منت د وزیر نه کا
کوم واده کومه کوژدن ده په جهان کښي　　چه فلک ئې و آخر وته ویر نه کا
په خوله هر یو سړی اسم د پیر اخلي　　یاري څه پکار چه نغوته د پیر نه کا
دغه نښي د قیامت نه دي نور څه دي　　چه د پلار ویل په زوي څه تاثیر نه کا
هسي چاري له ناصحه واقع کیږي　　چه له شرمه ئې هیڅ غل وکا سیر نه کا
په مرده پسي تکبیر و کاروان شي　　څوک گمان په ځان د هسي تکبیر نه کا
په دنیا پسي درست عمر زهیریږي　　ځان یو دم د خدای دپاره زهیر نه کا
د عیال دپاره تیر تر سر و مال شي　　دل جوئي په یوه ټوک د فقیر نه کا
رحمان گرم دي چه نارې د هجران اوري　　و آشنا وته کاته په خیر خیر نه کا

چه امید په عمارت د دې جهان کا　　لکه کرښه په اوبو هسي نشان کا
د اوبو په مخ د کرځي بقا نشته　　په نابود باندی ناحق د بود گمان کا
نادانانو هسي دین په دنیا بایلو　　لکه وړکي دُر بدل په پاره نان کا
د دنیا و دین نسبت و بله نه شي　　اور اوبه سره استوگنه په څه شان کا
عشق د نفس له خاصیته میره دي　　کالا سترگو به څوک څنگه په دهان کا
لکه کار د گوش و چشم سره بیل دي　　هسي دین و دنیا حکم په ځان ځان کا
په پیرۍ کښي د ځوانۍ خیال دي هسي　　لکه څوک چه د باغ سیر په خزان کا
بې درگاهه ئې بل ځاي د رحمان نشته　　په سفر استوگنه څو مسافران کا

عاشقان د ناصحانو وینا نه کا    مست هاتي د ماوتانو پروا نه کا
واړه جور د دې دهر مي قبول دي    که خدای ما له خپله یاره جدا نه کا
چه د گلو پریشاني شوه ور څرگنده    غنچې سر په زانو کښېښود خندا نه کا
و سیلاب ته د ډنډوکي څه حاجت دي    زړه چه ژاړي سترگي څه رنگ ژړا نه کا
دنیا کل په احمقانو ده ودانه    دانا ځکه وابستگي د دنیا نه کا
چه ئې زړه وي په هوا پوري تړلي    د حباب عمارت ځکه بقا نه کا
بې هنر دي چه څوک دین په دنیا پلوریي    هنرمند سړی دا هسي سودا نه کا
که څوک وائي هوښیار کوم دي وایه دا دي    چه بې خدایه نوره مینه په چا نه کا
گدائي که ورپېښېږي ځاي ئې دا دي    هر بادشاه چه دلجوئي د گدا نه کا
چه بیدل ئې په یوه نگاه رغیږی    څه انصاف دي چه دلبر ئې دوا نه کا
هر چه زړه ئې وي په یار باندي بایلوي    نوره مینه په چا بې له آشنا نه کا
چه تر غوږ ئې وي وینا د آشنا شوې    هغه غوږ هر گز په نوره وینا نه کا
و به نه رسي د یار تر بلند بامه    چه د زړه غولي روش په ژړا نه کا
زه رحمان د هغه یار په ژړا خوښ یم    که اغیار مي خدای له میانه پیدا نه کا

زړه مي بې خپله نگاره آرام نه کا    کامراني را څخه غواړي ناکام نه کا
بې ناکامه زیست محال دي په دنیا کښې    د کوم آس په خوله کښې دخل لگام نه کا
د آسمان مانۍ به هم قرار نه وي    مالک ځکه قصد د قصر و د بام نه کا
گاه ئې کښینوي په تخت کله په خاورو    زمانه رضا د هیچا مدام نه کا
بې له سروي چه آزاده خدای پیدا کړه    ترکې ځکه و هیچا ته سلام نه کا
کوه و دشت هم د خزان له غمه ریږدي    ځکه زرکه و چمن ته خرام نه کا
چا چه سر دي په سجده و یار ته ایښي    دوباره له دې سجوده قیام نه کا
چه ئې کله د یار په لوري لوښتې    لکه بحر هسي درومي مقام نه کا
نشستن د عاشق نشته لکه شمعه    څو صورت د عشق په اور کښې تمام نه کا
چه محظوظ وي په تش بوي د مهرویانو    هغه فکر د بوسې د پیغام نه کا
چه لذت ئی د سرو شنډو وي موندلي    نوره مینه د شرابو په جام نه کا
په هغو د لعلو لبو مي حرام دي    څو دا نور لذت په خپل سر حرام نه کا
رحمان هسی و خپل یار ته بې حجت دي    لکه عذر چه صاحب ته غلام نه کا

ځما اوښی چه دا هسي شست و شو کا	دا محنت واړه ځما د مخ آبرو کا
د عاشق د سینې چاک به ور څرګند شي	که څوک سر و خپل ګریوان وته فرو کا
تل ئې مخ وي تر خوبانو پوري وللي	عاشقي چه د چا اوښي په شیبو کا
د عشق اور چه شمع خود په سر قبول کړ	پروانه به څه حجت د ځان په سود کا
ګل څه نه وايي چه غرق په وینو ناست وي	بلبل څه لره بې ځایه ګفتګو کا
زه که مرګ غواړم بې یاره خو ګرم نه یم	جدائي سړی په ځان پوري به کوه کا
معشوقې په محنت نه دي چا موندلي	مګر خدای ئې په رحمان باندي پېرزو کا

څو یو ځله ئې تاراج په جفا نه کا	یار له یاره سره مهر و وفا نه کا
که ئې سر په بوسه ورکړم زه پوهیږم	چه قبول به دغه عجز ځما نه کا
چه په خپله رضا تللي مادر زاد وي	هغه هیچري د نورو رضا نه کا
څو ئې خپله مدعا حاصله نه وي	مهرویان په خوله د خضر سودا نه کا
که ئې سل ځله دعا کوم په عمر	ګوش و هوش د دعاګو په دعا نه کا
که آهو نه آتشین پسې وکاږم	لکه سروه له خزانه پروا نه کا
که رحمان په عاشقۍ کښې آرام غواړي	دا خو واړه ناروا که ناروا نه کا

# ب

هسي مست يم ستا د شونډو په شراب  چه به نه وي بل دا هسي مست خراب
لاس د ستا په مينه اچوم و گل ته  لکه بوټي ته لاس اچوي غرقاب
دا سرخي و سفيدي ده ستا په مخ کښي  که ځما په مخ باران دي د سحاب
څه اثر به ځما اوښي په تا کاندي  لا تازه شي اور په اوښو د کباب
عاشقان دي سترگي روڼي کا په عشق کښي  دا خواب نه دي منزل گاه دي د سيلاب
ما چه خال د ستا د ورځو په ميان وليد  نه بل هسي رنگ امام شته نه محراب
ښاپيرۍ چه ليدئ نه شي سبب دا دي  مخ د ستا له غمه نغاړي په حجاب
چه صباح شي ستا تر مخ پوري شرميږي  ځکه زيست په توره شپه کاندي ماهتاب
حجاب واخله مخ کړه تور د هغو خلقو  چه تحسين کا ستا په دور د آفتاب
هسي نه چه زه دلبر و تا ته وايم  خداي دي تا لره درکړي دا خطاب
سستا د مخ په ورق باندي خط و خال دي  د مصحف په صحيفو باندي اعزاب
ستا د حسن حساب هيڅ را څخه نه شي  هم په دا چه بې حساب دي بې حساب
يو کتاب په سړه بن کښي چا و نه کړ  بې رحمانه چه ئې وکړ دا کتاب

لاس مي وتړي د زلفو په طناب  بيا مي وسپاري د سترگو په قصاب
هسي آب ئې دي د دوو سترگو په تيغ کښي  چه بې سره په سر نه لري حباب
چه توسن د فلك زين کاندي له نازه  دا هلال ئې په ځاي راشي د رکاب
په درگاه ئې درويزه کاندي د حسن  کنډولی په لاس سپوږمۍ هم آفتاب
چه په ياد کښي مي سرې شونډي سپين رخسار دي  له چشمانو مي بهيږي سره شهاب
چه د مخ و آب و تاب ته ئې نظر کړم  راته هيڅ شي د گلونو آب و تاب
چي نسيم ئې د زلفينو را پيدا شي  درست مي ډوب کاندي په مښك و په گلاب
چه د سپي آواز ئې واورم هسي خوښ يم  لکه څوك په نغمه خوښ وي د رباب
ما وي مخ ئې گوندي ووينم په خوب کښي  باري چري شي بې ياره خورد و خواب
په غزل کښي خو دوه بيته انتخاب وي  د رحمان تمام غزل دي انتخاب

هر مطرب چه غوږي تاو کا د رباب    په دا تاو کښي ځما زړه کاندي کباب
چه سامع ئې په نغمه په ترانه شم    دیوانه شم ګریوان څیري مست خراب
هم ئې تار هم ئې ګفتار هسي اثر کا    چه هیڅوك ئې نه طاقت لري نه تاب
یو ئې ساز بل ئې آواز وي د لښتیو    دریم شعر پرې آغاز کړي انتخاب
څلورم ئې یو ساقي د ښنګه کښیني    چه مخزي ئې نه آفتاب وي نه مهتاب
دا څلور واړه فتنې په څلور کنجه    او پنځم ئې صراحي د مي ناب
شپږم وقت د نو بهار اووم ځواني وي    اتم شغل د کباب نهم رباب
چه دا همره آفتونه سره ټول شي    ترو څوك څه رنګ ځني کاندي اجتناب
چه دا هسي دلبران پرې اثر نه کا    یا به دیو یا به دیوار وي یا دواب
را ښرګند به شي پرهیز د پرهیز کارو    که قادر شي په شاهد و په شراب
زه رحمان له ریا زهده پناه غواړم    د ریا زهد عذاب دي هم عتاب

ورقونه لټوم د هر مکتوب    په کښي غواړم خال و خط د خپل محبوب
یا تنور دي یا دکان د آهنګرو    چه په عشق کښي تصور کړم خپل قلوب
په خندا خندا ځان اچوي واورته    خداي څوك مه کړه په حذبه د عشق مجذوب
زه چه غم د مهرویانو را په زړه کړم    له دې غمه لاړ شي زړه را څخه ذوب
ګوره عشق څه رنګ آسان کړه و عاشق ته    دا مشکل مشقتونه د ایوب
په ژړا ژړا تر هسي حده راغئ    چه ځان ړوند کړ په یوسف پسې یعقوب
عشق دي دا چه معشوقه شه و عاشق ته    ښه رخسار د مهرویانو په اسلوب
هغه څه پوښتې له هجره له وصاله    چه پخپله هم محب شي هم محبوب
چه نظر ئې له صورته په معنیٰ کړ    و رحمان وته یکسان شو زشت و خوب

چه نظر کړم په قسمت او په نصیب　　راته هیڅ شي خپل تالاش و خپل ترتیب
مگر خود پخپله خداي د چا طبیب شي　　گڼه نشته په جهان کښې بل طبیب
را څرگند دي سود و زیان د رقیبانو　　که خداي دي نه کاندي خپل یار د چا رقیب
چه خپل یار د چا طبیب شي مثال دا دي　　لکه څوك چه په وطن کښې شي غریب
چه غریب شي په وطن کښې فرق ئې نه وي　　که فرسنگ ئې وي تر میانه که جریب
ما په عشق کښې هیڅ حاصل نه کړه بي غمه　　هر چه وایي واړه ښه وایي ادیب
دښمن هم د سړي کله کله دوست شي　　دوستي نه کا د رحمان سره حبیب

زه پـــه ســـل رنـــگـــه راغـــب　　تـــه پـــه ســـل رنـــگـــه غـــایـــب
دا بـــه څـــه رنـــگ شـــي دلـــبـــره　　چـــه زه مـــســـت یـــم تـــه تـــایـــب
کـــه لـــه جـــوره دي فـــریـــاد کـــړم　　دا هـــم نـــه دي مـــنـــاســـب
کـــه څـــه وایـــم نـــه مـــي رســـي　　زه مـــغـــلـــوب یـــم تـــه غـــالـــب
څـــه ســـیـــالـــي بـــرابـــري ده　　د مـــطـــلـــوب او د طـــالـــب
دا ســـتـــا مـــهـــر مـــحـــبـــت کـــړ　　خـــداي پـــه مـــا بـــانـــدي واجـــب
درد و غـــم دي هـــمـــره نـــه دي　　چـــه ئـــې وکـــښـــم پـــه کـــاتـــب
جـــدائـــي ده ډیـــره ســـخـــتـــه　　د ارواح او د قـــالـــب
چـــه مـــجـــنـــون پـــه ځـــانـــکـــنـــدن شـــه　　زه ئـــې پـــریـــښـــودم نـــایـــب
وصـــیـــت ئـــې راتـــه وکـــړ　　پـــه څـــو رنـــگـــه عـــجـــایـــب
چـــه روزي دي شـــه رحـــمـــانـــه　　ځـــمـــا واړه مـــراتـــب

# ت

که مي وشي له دلبره ملاقات
بيا به نه ځم له دې دره په حيات
پس له دې مي دي استوګنه خداي نصيب کا
په دا در کښي که حيات وي که ممات
ښائي دا که زه خپل يار وته سجده کړم
هغه يار ځما قبله دي د حاجات
د خپل يار تر لعلو لبو به ئې ځار کړم
که شکري وي که قند وي که نبات
دا ځما د يار جلوه ده چه ليده شي
لکه نمر په صومعه و سومنات
تر ما لا په دلبرانو ډېر مين دي
چه خبري کړي د کشف و کرامات
د ريا له زاهدي ځما توبه ده
چه ئې کاندي حوك په رسم و په عادات
په ورځ پند و نصيحت وايي و بل ته
په شپه ناست وي د مغان په خرابات
دين ئې دام وي د دنيا په لار کښي ايښي
پرې را اړوي وحشيان د مخلوقات
د هغو په لور ئې سترگي وي ختلي
چه په لاس ئې سر سايه وي يا زکوات
زه رحمان له هسي اهله پناه غواړم
هر چه لاف کا په خلاف د مقامات

آفرين د عاشقانو په همت
چه په عشق کښي يك انداز وي يك جهت
نه ئې هيچري تغيير و نه تبديل وي
که تمام جهان پرې وايي ملامت
که څوك سل نصيحتونه ورته کاندي
غوږ ئې نه وي د هيچا په نصيحت
چه په يار پسې تر ځان و جهان تير شي
څوك کولي شي دا هسي مشقت
که تمام عمر ئې يار په سترگو ناست وي
تمام عمر ورته ښکاري يو ساعت
که يو دم شي هغه يار ور څخه لري
هغه دم شي ورته عمر د قيامت
که دوزخ لره د يار په مينه درومي
دوزخ هم ورته جلوه کا د جنت
د عشق لار د توکل په پښو غوځيږي
نه په پښو د رياضت و ديانت
په تالاش او په تدبير کله مونده شي
چه موقوف وي هغه کار په عنايت
د عاشق خاطر له غيره پاکيزه دي
د درياب په مخ کښي نه وي نجاست
خداي چه زړه د طالب کاڼي کړ رحمانه
کاڼي پريوت د طالب په عمارت

# ث

چه ویلي مي له تا دي دا حدیث　　سر نامه د هر انشا دي دا حدیث
چه آغاز مي کړ په مدحه د خوبانو　　ځکه گنج بې بهار دي دا حدیث
په ثنا د دل پسندو دلرباوُ　　دل پسند و دل ربا دي دا حدیث
لکه باد د صبحدم چه غنچه وا کا　　هسي رنگه دلکشا دي دا حدیث
چه اوصاف مي د سرو شنډو په کښي راوړه　　خوږ تر قند و تر حلوا دي دا حدیث
نه پوهیږم چه اوبه دي د حیاتو　　که نفس د مسیحا دي دا حدیث
د غونډ ژبو شاعرانو د خولې نه دي　　ځکه هسي رنگ صفا دي دا حدیث
ستا و مخ ته که څوك شمس و قمر وایي　　دروغ نه دي په رښتیا دي دا حدیث
که ځوك وایي چه چا کړي دا حدیث دي　　رحمان وایي چه ځما دي دا حدیث

د وصال شپه مي بدله په بیلتون شوه الغیاث　　د قیامت خواري را پېښه په ژوندون شوه الغیاث
ما لا طمع د وصال د نعمتونو ترې کوله　　نا گهان پیاله نسکوره د گرودن شوه الغیاث
هغه چار چه مي په لاس وه زه پرې نه ومه پوهیدلي　　اوس چه پوه شوم له اختیار مي بیرون شوه الغیاث
د وصال په طمع طوق د جدائۍ شه را په غاړه　　هغه طمع چه ځما وه اوس طاعون شوه الغیاث
په حکمت په عقل پیتي د عشق څوك اخستي نه شي　　په دا کار کښي ما ته ملا د افلاطون شوه الغیاث
ما رحمان د یار وصال په آسائ موندلي نه دي　　زرد روئي مي سر خروئي په جگر خون سوه الغیاث

یار یاري را سره نه که الغیاث　　نه ئې ترس شي نه ئې کرکه الغیاث
سرو و مال واړه ځما و دل آرام ته　　نه ارزیږي په کنجکه الغیاث
په حملو حملو مي زړه وړي نه پوهیږم　　آفریدۍ ده که ختکه الغیاث
خو چه را کاږي چوگان په مخ د زلفو　　کوي ځما دا خراب زړه که الغیاث
بیلتانه ئې پیښاور راته تنور کړ　　له خیبره تر اټکه الغیاث
هیڅ سبب ئې موندی نه شي جفا کارندي　　نه پوهیږم چه په څه که الغیاث
په اخلاص و په راستۍ ورته ولاړ یم　　یار جفا همره په څه که الغیاث
سل خبري که له صدقه ورته وکړم　　یار یوه را سره نه که الغیاث
چه مي ویني له رقیبه سره خاندي　　په ژړا مي لیمه سره که الغیاث
زه رحمان مدام د یار په زما دروومم　　یار په خپله رضا تله که الغیاث

# ج

چه برهم کا عاشقي د چا مزاج  حکیمان ئې درمانده شي په علاج
په آشنا پسې تل ژاړي په دوه سترګو  د اوښو په ځای خوناب کاندي اخراج
دواړه لاس ئې وي له دواړو کونو وللي  ډوب وي تل د عاشقۍ په امواج
په هغو کښې چه څه بوي د عاشقۍ وي  په کښې نه وي بوي د رسم و د رواج
ابراهیم ادهم څه هسي نادان نه وُ  چه نظر ئې یا په تخت و یا په تاج
مجنون هسي رنګ مین په لیلي نه وُ  چه په نورو ئې موقوف و احتیاج
لیونتوب له لیونو ته تلوني نه دي  که ئې راج په خونه ورشي که تاراج
که ئې سر لکه منصور غوندي په دار شي  دغه دار دي و رحمان وته معراج

# ح

په طلب د ماهرويانو سرگردان دي ځما روح　　لکه باد د گل په بوي پسې پريشان دي ځما روح
ستا د حسن و آفتاب ته چه سپارلي ځان شبنم دي　　لکه صبح د ژړا په ځاي خندان دي ځما روح
چه مي ستا د جمال عکس دي ليدلي په خپل ځان کښي　　هم په دا د آينې په څير حيران دي ځما روح
ستا د مخ د آئينې له برکته ځما جانه　　هميشه لکه طوطي هسي گويان دي ځما روح
لکه رنگ د ميو نابو چه ليده شي په ښيښه کښي　　هسي رنگ په ضعيف تن کښي نمايان دي ځما روح
منتظر يم د وصال و گلستان ته تل تر تله　　سر تر پايه د شبنم په څير چشمان دي ځما روح
چه حاصل مي له حسنه روښنائي شوه په طلب کښي　　شپه و ورځ لکه آفتاب په لار روان دي ځما روح
ستاه په زلفو په رخسار پسي رحمان شه بې وطنه　　مسافر د هندوستان و خراسان دي ځما روح

ستا وصال دي را بخښلي ځما روح　　ستا هجران دي را پرودلي ځما روح
ستا په مخ پسې مي درست وجود راهي شه　　له صورته دي وتلي ځما روح
چه هر گز مَلَكُ الَمَوُت پرې نه پوهيږي　　هسي شان دي تا وکښلي ځما روح
ځان ئې هسي ستا په مينه پسې ورك کړ　　چه هيچا نه دي موندلي ځما روح
که وي هم به تا څخه وي که خداي کاندي　　نه دي بله خوا ته تللي ځما روح
بلبل نه دي دا چه الوزي په گلو　　ستا په لور دي الوتلي ځما روح
چه ئې خاوري کړ صورت د ستا په در کښي　　سر تر عرشه دي وکښلي ځما روح
ته ئې پيژنې چه څه دي يا څه نه دي　　نور چا نه دي پيژاندلي ځما روح
زه رحمان له خپله ياره خبر نه يم　　چه ئې خ څه شان دي کوتلي ځما روح

# خ

چه پیدا شو ستا چشمان دا هسي شوخ — نور به نه وي مردمان دا هسي شوخ
کج زلفان کج ابروان لکه چه ستا دي — نه لړم شته نه ماران دا هسي شوخ
ډېر غمونه شوخ شوخ سته په جهان کښي — ولي نه لکه هجران دا هسي شوخ
مګر د یو وي چه بې غمه وي په هجران کښي — ګڼه نه به وي انسان دا هسي شوخ
دا فتنې او فسادونه به وو چري — که پیدا نه وي آسمان دا هسي شوخ
د آشنا له غمه زړه د آشنا نه چوي — آفریده کړ خدای جهان دا هسي شوخ
چه یوسف ئې د دنیا په متاع ورکړ — پیدا مه شه بل کاروان دا هسي شوخ
چه بوسه له یاره غواړي بې ادبه — خدای دي نه کاندي رحمان دا هسي شوخ

کله شو لا کله خریدار یم ستا د مخ — تیر تیر سر ما له په بازار یم ستا د مخ
بې د ستا له مخه نور مي هیڅ په مخ کښي نشته — هسي رنګ نتلي په ناتار یم ستا د مخ
هیڅ په سترګو نه وینم دا خپل صورت چه کوم دي — ډوب تر هسي حده په انوار یم ستا د مخ
درد و آه کاږم بهانه د تماکو کړم — سوي لوغړن مدام په نار یم ستا د مخ
نورو کړي واړه همګي د دنیا کار کا — زه همیشه غرق په انتظار یم ستا د مخ
شکر چه ئې خلاص کړم د نور خلقو له مینه — سر په سجده ایښي منت بار یم ستا د مخ
هره خوا چه درومم زه رحمان د زړه په سیل — بل مطلب مي نشته طلبګار یم ستا د مخ

ما سحر سبا لیدلي وُ د چا مخ — چه مي درسته ورځ و نه لیده دا ستا مخ
دا خو مخ ځما و تا وته خدای هیڅ کړ — ګڼه هر یو آشنا ګوري د آشنا مخ
ډېر مخونه د جفا دي را څرګند کړه — لا به کله را څرګند کړې د وفا مخ
څو د مرګ په تماچه اوښتي نه دي — اوښتوني له تا مه ګڼه ځما مخ
زه په تا پسې راغلي په دا مخ یم — که ته نه وي ما به څه کول په دا مخ
ما به څه لره په تا پسې ژړا کړه — که موندي شوي بل د ستا په څیر زیبا مخ
د رقیب طمع مي نه وه ستا په در کښي — په جنت کښي دي راښود د بلا مخ
زه به څه رنګ د رقیب و مخ ته ګورم — کله اهل سنت ګوري د ترسا مخ
د چکنا چکنۍ بیلتون په نیمه شپه وي — ستا ځما په حال غماز شه د صباح مخ
رحمان ستا په مخ دا ورانه دنیا ګوري — خدای بې تا ور څرګند مه کړه د دنیا مخ

# د

پادشاهانو که قصرونه کړل آباد
ما د عشق عمارتونه کړل بنیاد

نوم د کوم یوه بادشاه هسي یادیږي
لکه نوم دي د مجنون او د فرهاد

عشق عاشق لره یو هسي پیر استاد دي
چه به نه وي بل دا هسي پیر استاد

دغه واړه کرامت د عاشقۍ دي
چه څوك غوث کاندي څوك قطب څوك اوتاد

د دنیا چاري همه واړه فاني دي
څوك به څه کا په دا چارو اعتماد

لکه سوري چه د نمر په مخ کښي گرزي
نه استوگنه چرته کاندي نه استاد

هیڅ وفا ئې له هیچا سره و نه کړه
که جمشید وُ که بهمن وُ که قباد

که جمشید وُ که بهمن که کی قباد وُ
که نمرود وُ که فرعون وُ که شداد

رسولي ئې تر مراده هیڅوك نه دي
همه واړه هسي پاتي شول نامراد

نه چا ختم نه دعا ورپسي وکړل
که ئې آل که ئې عیال و که اولاد

زه رحمان د زمانې له جوره درومم
خپل صاحب لره په داد و په فریاد

زه که لافي د وفا کړمه هر چند
هغه یار مي باور نه کړي په سوگند

زه بې یاره هسي زیست کړم په جهان کښي
لکه زیست وي په مجمر کښي د سپند

آبرو ئې د طالبانو خپل مطلب وي
آبرو ئې د غلامانو خپل خاوند

لکه یار مي سر بلند دي په جهان کښي
په تاثیر ئې هسي زه یم سر بلند

لکه یار چه مي څرگند دي په جهان کښي
زه هم هسي په داد ور یم څرگند

چه مي مدحه د خوبانو کړه آغازه
هر کلام مي د لپذیر شه دل پسند

لکه خوند لري ځما خوږې خبري
په شکرو کښي هم نشته هسي خوند

هغه قند چه خداي ځما په خوله کښي کښیښود
حلوایانو څخه نشته هسي قند

لکه زه چه سخندان و هنرمند یم
بل به نه وي سخندان و هنرمند

په اشعار کښي قوتناك لکه زمري یم
ولي نه یم د زمري په څیر گزند

هم په مدح و هم په هجو ښه پوهیږم
ولي نه یم په دا چارو ډیر خورسند

بې له عشقه که مي عیب که مي هنر دي
ما غوڅ کړي دي له ځانه بل پیوند

زه عاشق یم سروکار مي دي له عشقه
نه خلیل نه دوادزي یم نه مهمند

چه و ما ته نصیحت کا څوك په عشق کښي
گویا پلار ته نصیحت کاندي فرزند

هر سړی چه آئینه په لاس کښي خاندي
گویا کاندي په خپل ځان پوري ریشخند

رنگ ریزان دي اول خپله ږیره رنگ کا
بیا هاله دي و رحمان ته وایي پند

که قاصد یې د مقصود      آواره کړه زیان و سود
هر چه درشي ستا په وړاندي      واړه وګڼه بهبود
هر چه دي سوي له خدایه      واړه وګڼه نابود
رضا پاسله و قضا ته      مدام خوښ اوسه خشنود
و هستۍ وته جلوه کا      لکه ابر هسي دود
ته و ځان وته نظر کړه      چه قبول یې که مردود
ننداره‌چي د خپل صورت شه      چه مسلم یې که جهود
امتي د ابراهیم شه      تابع مه شه د نمرود
د غفلت له خوبه پاڅه      څو به اوسې خواب آلود
مقید و مشغول اوسه      په دعاو په درود
آسمان طوره په رکوع شه      زمین طوره په سجود
ټول اشیا د خدای ثنا کا      په نغمه لکه داوود
که بیدار شې خود به واورې      په هر لوري دا سرود
که ایاز غوندي بنده شې      نور به نازکړې په محمود
ټول اسباب د ښو د بدو      مهیا دي هم موجود
که دانا یې و بله بیل کړه      فرموده و نافرمود
څو سپند نه شې په اورکښې      نه وي خوند د بوي دعود
ځان له خبثه پاکیزه کړه      لکه بحر نامعدود
هلاك ځکه شي رحمانه      چه پاك نه شي دا وجود
رحمان بې د یار له ذکره      نه زده بل ګفت و شنود

# ډ

چه مي يار وليد په سيمه د اعيار ګډ له غيرته مي ليمه شو په خونبار ګډ
دغه حق د بلبالنو په جانب دي خداي دي نه کا مښګيرك په لاله زار ګډ
زه په وصل کښي هجران هسي پيځمه لکه څوك چه خالي لاس وي په بازار ګډ
په اميدو د زلفو ونښتم په دام کښي روهيلي وم ساده دل په هندو بار ګډ
د ديدن په ګدائي کښي مي ننګ نه شي درويزګر يم د بدانو په بازار ګډ
د وفا د ګلو پاڼي په کښي نشته کاشکي مه وي د دې دهر په ګلزار ګډ
زړه مي بې له خپل نګاره آرام نه کا که هر څو ئې کړم په نفس و په نګار ګډ
که پخوا تر آشنائي بيلتون ليده شوي هيڅ بنده به د خداي نه وُ په دا کار ګډ
زه رحمان ئې د فردوس له غمه خلاص کړم که په کلي په کوڅه شوم د خپل يار ګډ

# ر

همره اوښي مي بهيږي په رخسار چه غرقاب مي هم گريوان دي هم كنار
هغه يار مي هسي ناست د زړه په سر دي لكه ايښي د چا گل وي په دستار
كه څوك وايي چه مار كله په كټ خيژي زه خوړلي يم په كټ د زلفو مار
خود يار بيماري سترگي خداي خوني كړي گڼه خون كله كولي شي بيمار
كه په دار شم زه د يار له لاسه خوښ يم سروقد دي ځما يار ځما دلدار
بس كړه دا چه زه پهار پسي غوڅ غوڅ يم خداي دي نه كړي لكه زه يم هسي يار
همره جور لكه يار چه ما سره كا ياد مي نه دي همره جور د اغيار
دلبران كوډي جادو وكړي زړونه اخلي هغه وايه چه بې كوډو وي دلدار
چه د زړونو له نمانځلو بې پروا دي تروكه زړه د سړي يو سي څه پكار
په گريوان ئې تل د اوښو باران ووري نه وركيږي د رحمان د زړه غبار

چه دي زړه پوري تړلي استوار دا جهان دي د نيكه دي كه د پلار
ته خپل پلار و نيكه وگوره چه څه شول هسي ستا دي هم په دوي پسې رفتار
تل وړنبي د ورستي پل دي پرې تيريږي كړي نه دي چا په پله باندي قرار
هسي نه چه زه يوازي تا ته وايم راغله لاړه ستا په طور صد هزار
دعوي مه كړه په ناحق به ئې خپل نه كړې پردی ښهر پردی ملك پردی ديار
چه استوگڼه په پردي وطن كښي كاندي هغه نه لري د هيڅ واك و اختيار
كه هزار قسمه وخوري په يو كار كښي نه كا څوك په مسافرو اعتبار
چه سبا شگفته كيږي ماښام رژي څه اميد دي په گلونو د گلزار
كه دي ورور كه دي عزيز وي كه دي يار وي مه ئې ورور مه ئې عزيز گڼه مه يار
چه پيدا شي همگي واړه فنا شي اې رحمانه دا جهان دي دا ئې كار

ځو جفا قبوله نه کړې د اغیار و به نه ویني په سترګو مخ د یار
چه اول ئې خار زرغون شي په پهلو کښې عنچه هله شګفته شي په ګلزار
جنت چا په رضایت موندلي نه دي ولي بویه هر بنده لره خپل کار
که مونده شوي خوشخولي په خوشبوئي کښې پروت به نه وُ په چندن باندي ښامار
آب تر لعلو د لاله ګلونو ډېر دي بخت دي دا چه ځوك عزيز کاندي ځوك خوار
هسي زیب کا په بیاض د رحمان شعر لکه زلفي د خوبانو په رخسار

ځوك دي را کاندي قسم په کردګار که درم لرم په کور کښې یا دینار
زه دینار و درم نه لرم په کون کښې ولي نور عالم مي بولي دنیا دار
هم په دا چه نه له ځایه چرته خوځم نه د هيڅ یوه مخلوق یم منت بار
نه مي ښکته ملك لیدلي دي نه پورته خبر نه یم په یمین و په یسار
آب و خور لکه آسیا په ځاي را رسي په خپل کور کښې مي سکون دي هم رفتار
لکه ونه مستقیم په خپل مکان یم که خزان را باندي راشي که بهار
توکل مي لاس پسې سره کړه په نکریزو چه په ځاي ئې کښېنولي یم قرار
چه ځما په باب کښې کښلي دي را رسي که رحمت دي که زحمت دي وار په وار
چه هژده هزار قومونه ئې پلار کړل مربّي مي دي هغه پرودرګار
کار همه په اراده د خداي موقوف دي هيڅ موقوف نه دي د چا په انتظار
غم به هیچري و نه کا په دنیا کښې که څه کیږي د رحمان په اختیار

که د عشق لاره اغزنه وي هر ګور د عاشق په پښو ځپلئ دي داور
که دیدن د یار مونده په انتظار شي ځما سترګي دي شبنم غوندي ځاور
تیغ د اسپنو محتاج د نرم آب دي قرب و حلم یو په سل دي زیات په زور
له لوئي سر کشئ ځما توبه ده خداي ځوك مه کړه د آسمان په څیر نسکور
خداي زده څه سودا به پیښه په بازار شي د بازار خبري نه شي په خپل کور
دا همه واړه عاشق لره پیدا دي که تهمت که ملامت دي که پیغور
جفا ناز وجور و کبر د خوبانو ما په ځان دي قبول کړي لکه پور
راحت بې زحمته نه دي چا موندلي غم ښادي د دې دهر خور و ورور
رحمان هسي په خپل یار پسې غوڅ غوڅ یم لکه غوڅ په خپل اولاد وي پلار و مور

دا څه مخ دي منور — چه هم شمس دي هم قمر
دا څه زلفي دي مشکيني — چه هم مشك دي هم عنبر
دا څه پيوسته ابرو دي — چه هم نيش دي هم نشتر
دا څه سترگي دي قاتلي — چه هم سيف دي هم خنجر
دا څه شونډي دي مي گوني — چه هم مي دي هم شكر
دا څه سپين سپيڅلي غاښ دي — چه هم در دي هم گوهر
دا څه سيب زنخدان دي — چه هم سيم دي هم ثمر
دا څه قد و څه قامت دي — چه هم گل دي هم عرعر
دا څه ملا ده باريك وضعه — چه هم موم دي هم كمر
دا څه زړه دي د خوبانو — چه هم موم دي هم حجر
دا څه يار دي نه پوهيږم — چه هم دل دي هم دلبر
دا څه بت دي ځما ربه — چه هم بت دي هم بشر
دا څه شعر دي رحمانه — چه هم گنج دي هم هنر

دغه يار دي دا اغيار — دغه گل دي دغه خار
دغه گل دي دغه خار — دا منصور دي دغه دار
دا رقيب دي دا حبيب — دغه گنج دي دغه مار
دغه عشق دي دغه عقل — دغه غم دي دا غمخوار
دا هجران دي دا وصال — دا خزان دي دا بهار
دا طاعت دا معصيت دي — دغه نور دي دغه نار
دا عالم دي دا جاهل — دا خفته دي دا بيدار
دا رحمان دي دا جانان — دا طبيب دي دا بيمار

هر چه نه وي خوار و زار — په طلب د خپل دلدار
تر پړوني صدقه شه — د هغه عاشق دستار
هزار حيف دي هزار حيف دي — هزار څه لا صد هزار
چه عاشق په عاشقۍ كښي — نه حلال وي نه مردار
نه پتنگ د خپل څراغ وي — نه بلبل د خپل گلذار
نه مجنون غوندي رسوا وي — نه منصور غوندي په دار
دواړه نه كيږي رحمانه — يا به يار شي يا بيزار

هسي تله کاندي و گور ته ياران زر زر لکه تله کاندي خپل کور ته کاروان زر زر
هسي زر زر مرگ په مونږ شتابي کا لکه لو د پاخه کښت کا دهقان زر زر
هسي زر زر دا دنيا و بله اوړي لکه اوړي و بله ريگ روان زر زر
هسي زر زر صورتونه دي نړيږي لکه رژي لاله زار په خزان زر زر
هسي زر زر دا شيرين عمر تيريږي لکه بحر چه بهيږي روان زر زر
هسي زر زر ځنبول د بڼو نه وي لکه درومي له جهانه رحمان زر زر

چه په زور ور سره نه ئې برابر د هغو تر ځنگه مه کښينه زړه ور
زورآور اور و اوبه دي فهم وکړه چه ډوب نه شې يا و نه سيځې بشر
زندگي که بې اوبو بې اوره نه شي تل هم نه دي هيچا اينښي په ټټر
خداي ور مه وله سيلاب د چا په خونه که په قطع هم اوبه وي د کوثر
و دي نه لگيږي اور په کور د هيچا که روڼا ئې وي د شمس و د قمر
چه ئې درست صورت غلبيل شي په اغزيو وخوړ مه شه د هغې ونې ثمر
د هغه ديوال په سوري ځوك کښېي مه نه چه ولاړ وي لکه زوړند چاو د کمر
چه په گيلړه دي ځوخيږي مخ ئې ورك شه که د سرو زرو چاړه وي يا خنجر
ناکرده سودونه ډير دي په جهان کښې سود هغه دي چه د خير وي نه د شر
و اوبو ته اچاوه نه شي ځان خوړ دي گڼه ډير دي په درياب کښې در گوهر
چة له آب و له حرمته سره نه وي خداي ور مه کړه و چا هسي سيم و زر
زور آور که رسوي و چا ته فيض له دې فيضه سره وگڼه ضرر
په ياریَ د زور آور و غلط مه شه مگر دا چه تر ده ته ئې زورآور
په هر وقت چه ته غالب و دي مغلوب وي ترو هاله ئې قدمونه ږده په سر
يا خو دا چه ته قدم ئې په در نه ږدې دغه پسه ئې ځان وگڼه پدر
چه هنر کښې ياري د زور آوارو زه رحمان کومه بول په دا هنر

پورته بدر را ښکاره شه ښکته نمر ښکته پورته واړه مخ دي د دلبر
نمر سپوږمي مي په پالنگ د پاسه زغړي چه مي يار په بالښت ولگوي سر
په سرو سپينو درو لعلو ئې غوږ ډك شي چه مي غوږ كاندي د اوښو په در در
چه دي ووينم په مخ مي اوښي درومي لكه موم چه په آفتاب شي برابر
بل مذكور د سخنگويو سترگو نه زده بې له دې ذكره چه اللّٰهُ اكبر
په شرابو كښي خوند نشته د شكرو د يار شونډې هم شراب دي هم شكر
كه سل ځله پټ تر شونډو لاندي خاندي نه پټيږي آب د لعل و د گوهر
دا خو ما لره خداي را كړ گڼه نشته هسي بت په بتخانه كښي د آذر
پس له دې به ئې په نام د مَلَكَ بولم هم په دا چه نشته دا رنگه بشر
كه رحمان صاحب نظر باله شي ښائې چه مدام د يار په مخ لري نظر

تل به نه وي شگفته گلزار د عمر نه به جوړ وي هميشه بازار د عمر
لكه سيند د اباسيند په غورزي درومي هسي يون دي په تلوار تلوار د عمر
لكه برق چه مخ ځرگند كاندي بيا نه وي هسي تيز دي بې سكون رفتار د عمر
سر كشي لري تر هسي حده پوري چه نيوى نه شي هيڅوك مهار د عمر
چه سمند ئې نه جلب لري نه واگي خود به پريوزي عاقبت شهوار د عمر
په ساعت د سلو كالو ياري پرې كا بې وفا په هسي رنگ دي يار د عمر
خپل صورت به د حباب په كمتر گوري كه څوك وكاندي په زړه كښي شمار د عمر
نه له كوره چرته ځمه نه سفر كړم بې سفر مي غوځيږي لار د عمر
عاقبت به د اجل په مقراض غوڅ شي پيوسته به مدام نه وي تار د عمر
بيا ئې وار په دا دنيا نشته رحمانه په هر چا باندي چه تير شي وار د عمر

زه تير شوي يم تر سر      په طلب د خپل دلبر
ځو ژوندي يم په دنيا كښي      پري به نه ږدم دغه در
د آشنا په طلب گرزم      وچي شونډي لېمه تر
يو قدم مي دي په بحر      بل قدم مي دي پر بر
دواړه لاس مي دي نيولي      هم په شام هم په سحر
مناجات مي دي و خداي ته      كه ئې وويننم بشر
هميشه له خپله بخته      گله مند يم مرور
چه په ما ئې پيرزو نه كړ      د خوبانو يو نظر
هم ئې و نه ښوده ما ته      بې له عشقه بل هنر
عاشقي مي رب رسوا كړه      په جهان كښي لكه نمر
نصيحت را باندي نه كا      لكه موي هميره اثر
واوره غوږ باسه ناصحه      كوتاه وايم مختصر
په مولئ مي دي سوگند وي      هم په روح د پيغمبر
چاوا ته مي بيرته نشته      چه عالم شه را خبر
تر نيسنه به ئې ځاركړم      كه مي سيم دي كه مي زر
كه مي سيم دي كه مي زر دي      كه مي دركه مي گوهر
زه رحمان تر هر څه تير يم      تير به نه شم تر دلبر

په بزرگئ د هغه پاك پرودگار      موقوف مه شه په سړي د سړي كار
په سړي چه د سړي غرض موقوف شي      نور بې آب و بې حرمته شي روزگار
احتياج هسي بلا ده په جهان كښي      چه پلار زوي كا د زوي زوي پلار
په ساعت كښي گدا شاه شاه گدا كا      دا فلك ځكه باله شي كج رفتار
چه همه عمر ئې تاج وي په سر ايښي      ور په سر كاندي گيډي د خس و خار
چه قادر نه په درم و په دينار وي      په هغو باندي گنجونه كا انبار
زمانې د رحمان زړه دي كباب كړي      له احواله ئې څوك نه دي خبردار

پس له مرگه که څوك ارت غواړي خپل کور — که حق وايم همره ارت دي بويه کور
تر ځان زياته کمه چار څه پکار نه ده — ځان په لويشت کړه چه دي څو دي اوږده سور
چه جامه د چا کوتاه شي يا اوږده شي — ورکاوه شي هنرمند لره پيغور
هر سړي چه په حساب کښي تير و بير شي — ملامت پرې وايه کيږي لور په لور
چه لائق د ملامت او د تهمت شي — ځاي لري که بې عزت شي هم سر تور
چه عزت حرمت ئې نه وي په جهان کښي — هغه هسي ژوندون وسوزه په اور
بې عزت سړي به خوښ د هيچا نه وي — مگر هسي بې عزت وي ځني نور
خپل مجلس ئې تر جمله مجلسو خوښ وي — په هر ځاي چه سره جمع شي خمسور
هر هم جنس د خپل هم جنس سره جوړ وي — زيب کا هره کشيده په خپل انځور
نا بينا په خپله سيمه کښي بينا وي — بينايان په پردي ملك شي کر و کور
درست صورت د يوه نوك په درد درد مند سي — وران شي ښهر د يوه سړي په تور
چه يو غاښ په خوله کښي زوړند شي يا ووزي — درسته خوله پرې بد نمايه شي هر کور
يو سړي چه په کوړمه کښي د چا بد شي — واړه بد شي که پنځه وي که څلور
بد کرداره زوي پيدا مه شه له موره — حبطه کاندي ناموس د پلار و مور
هر څوك خپله خوشنو دي له خدايه غواړي — باري نه شي دغه کار په زر و زور
خداي په خپل قدرت څوك لوي و څوك هلك کړه — نه چه هر يو ښهر ډهلي شه يا لاهور
د چا تاج زرين په سر تر ملا خنجر وي — د چا پنډ په سر په ملا ټونبلي لور
څوك په آس د پاسه سور وي توغ دوړاندي — څوك بړير کلي گرزاوه شي په خره سور
د تنگو پورونه هر څوك و بله کاندي — بخت هيچا ور کړي نه دي چا له پور
اې رحمانه د خداي نوم به چا وا نه خست — که د خداي چاري په پلار شوي يا په مور

په نظر د بې بصر — له که شام هسي سحر
له که شام هسي سحر — له که سنگ هسي گوهر
له که سنگ هسي گوهر — له که خاوري هسي زر
له که خاوري هسي زر — له که خير هسي شر
په نظر ئې معلوميږي — همه واړه برابر
که څوك ښه ورسره کاندي — تر بدۍ وي لا بتر
که څوك بد ورسره کاندي — تر نيکۍ وي لا بهتر
نه په بدو زهيريږي — نه پرې ښه وي د چا زبر

په صواب و په خطاب ئې  نه دليل وي به نظر
نه آگاه په خپل بهبود وي  نه آگاه په خپل ضرر
نه په عيب باندي پوهيږي  نه پوهيږي په هنر
لکه ړوند و گوڼ چه گوري  هسي هيڅ نه وي خبر
له طاعته له گناهه  څه خبر وي ځناور
ځناورو نور څه نه زده  يا ئې خوب وي يا ئې خور
دا خو ته يې ځما نفسه  چه دي زه کړم کور وکر
تمام ووتې له عقله  په دنيا پسي اوتر
نه دي فرض د خداي ادا کړه  نه سنت د پيغمبر
نه دي مرگ په زړه ياديږي  نه خواری د محشر
اوده پروت ئې دا دي نه زده  چه په خوا لرم سفر
په هر دم در څخه درومي  که پوهيږي دا بشر
هغه تور ويښته دي څه شول  چه هم مښك وو هم عنبر
هغه قدر دي مجنون بيد شه  چه چنار و پا نښتر
تن دي درست زير و زبر شه  زړه دي نه شه لروبر
تر پنځوس تر پنځه تير شوې  ته لا ځان بولې پسر
نه دي ترس شي نه دي ويره  نه په زړه باندي اثر
بل بل نه وي لکه ته يې  هسي شوخ و ځگر ور
په غفلت دي عمر تير کړ  نه رهرو شوې نه رهبر
عبادت دي په ريا شه  لکه ډك په لاکو زر
لکه قلب ناسره مهر  پټ په زروکښي حجر
لکه پټ وي په دانه کښي  سل اغزيه د شجر
لکه سحر چه بر پاي کا  سحرگر و جادوگر
لکه تش صورت بې روحه  چه تصوير کا مصور
لکه تش کدو بې مغزه  ميان خالي و تن پرور
لکه زړي په ميوکښي  درون سنگ بيرون ثمر
لکه بې لاسه لستوني  سر تر پاي تر سر
لکه ټگ و دغا باز وي  په مرغانو کښي ډکر
لکه بې نمکه ناوې  چه په سر کاندي ميزر
تر ميزر لاندي چا څه زده  چه دختر وي که مادر

نه ئې حسن نه جمال وي — غولوي خلق په زيور
هي له هسي فريبيانو — لکه زوړند چاو د کمر
نيم په زمکه کښي دننه — نيم بر سيره لکه غر
په دستارکښي ئې مسواك وي — تر بغل لاندي خنجر
په ايروکښي پټ بخري — په وښوکښي پټ ژور
په شپه ويني د مظلوم خوري — صباح کښيني په منبر
په زړه تور لکه تبيئ وي — په مخ سپين لکه قمر
د دنيا په طلب گرزي — خپل ځان بولي قلندر
کلمه په ژبه وايي — په زړه نه لري باور
په مثال د منافقو — نه مسلم وي نه کافر
نه مسلم وي ن کافر وي — نه په خلا ن مرور
پريشان گرزي سر وهلي — کوي په کوي و در په در
هميشه رفت و آمد کا — د زر دارو په گذر
په کوخه د دنيا دارو — گوخوري کا لکه خر
اورنگ زيب هم يو فقير وه — چه ټوپۍ ئې وه په سر
و ټوپۍ وته ئې شا کړه — چه قادر شه په افسر
خو ئې همره فقيري وه — چه څه نه ووُ ميسر
چه فلك ئې ياري وکړه — نور ئې ملك کړ مسخر
گوره څه چاري ئې وکړې — په عيال د خپل پدر
وار په وار تر تيغ ئې تير کړ — د خورم تمام ټبر
يو ټبر د خورم څه وه — ډير عالم ئې کړ ډبر
تمامي جهان ئې ونغړد — چه ئې لاس شه باندي بر
په فريب فريب ئې خپل کړه — بيجاپور او بهانگر
بيجاپور بهانگر څه ووُ — لا جينچا و چينجاور
هم ئې هند په ډکه واخست — هم کابل و پښاور
بيا ئې ذکر شوه په زړه کښي — بادشاهي د هفت کشور
له حوص ورته هيڅ شو — هم دارا هم سکندر
خيال ئې دا وه په خاطر کښي — چه به خپل کړم بحر و بر
باري ورځ ور ځني لاړه — وقت پر راغي مازيگر

نه ئې مراد د زړه حاصل شه
نه ئې يخ کړه خپل تټر

همگي شو ځني پاتي
که ئې ملك وه که لښکر

خالي لاس له دنيا ووت
لکه عيني درويزگر

له دنيا ئې هيڅ يو نه وړه
مگر شوئي يو ځادر

خوار حيران په زمکه پروت
بې بالينه و بې بستر

نه پوزي شه تري د لاندي
نه تري لاندي شه تغر

د بني په حير خفيف شه
چه ثقيل وه لکه غر

د سيلاب په مخ کښي لاړ شه
لکه خس وي يا وزر

حق ئې پاتي په گردن شه
د سپاهي و د چاکر

اوس ئې زه په روح دعا کړم
که ئې خداي کا بهره ور

حق تعالي که ئې نصيب کا
هغه شيرين حوض کوثر

د جنت په خوشبوئي ئې
خداي دماغ کړه معطر

په درست هند باندي ئې حق وه
هند يو شپه وه دي و نمر

د دي نمر په روښنائي
تمام هند و منور

په روڼا ئې خلقو زيست کړ
نه ځه خوف و نه خطر

خو چه مخ ئې په غروب کړ
نور پيدا شه شور و شر

چه په نوم د اورنگ زيب وُ
و خوړگاو هغه دفتر

اوس نوبت د شاه عالم دي
دور طور شه دگر

خداي زده ځه بازي شي پېښه
عاشورا شي که اختر

رنگارنگ بازۍ کاندي
د آسمان دي پازيگر

گهي تلخ شي لکه زهر
که شيرين لکه شکر

چه ځه وشو هغه وشو
لا به کيږي مقدر

ما خو نوم د اورنگ واخيست
دا احوال دي د هر

هر سړي د خپلي خوني
هم بادشاه دي هم سرور

هر چه اهل د دنيا دي
واړه هسي دي اکثر

دا بيان دور و دراز دي
رحمان وکړ مختصر

## ړ

خراب زړه مي د دلبرو هوا یووړ    د هوا له وړ یو چا زده چه چا یووړ
ګوښي ګوښي ښایسته مي زړه وکاږي    زه و کوم یوه ته وایم چه تا یووړ
چه مي زړه لره د تورو زلفوو ځاي غوښت    هغه زړه را څخه توري بلا یووړ
د سیلاب په مخ کښي کله د چا خوب شي    شیرین خوب را څخه ډیري ژړا یووړ
هغه عقل چه ئې لاف د خود رایي کړ    په یوه پیاله ئې واړه ما یووړ
هغه رخت چه مي د صبر سکون وُ    هیڅ را نه کړه مهرشانو ویړیا یووړ
که یې یووړ خسته زړه مي ترې قربان شه    نا آشناؤ وړي نه دي آشنا یووړ
هیڅ نا حق پرې شوي نه دي که حق وایم    معشوقې د رحمان زړه په رضا یووړ

ستا دې خواب آلودو سترګو خواب را څخه یووړ    شونډو دي لذت د مي ناب را څخه یووړ
نه مي اوښي پاتي شوې نه صبر په صورت کښي    ډیري بې صبرئ د مخ آب را څخه یووړ
زړه مي په نغمو نغمو سوري کړ مطربانو    عقل ساقیانو په شراب را څخه یووړ
یو ساقي بل یار دریم مطرب سره یو ځاي شو    زړه ئې له ګوګله به شتاب را څخه یووړ
څه شوکه ئې یووړ خسته دل مي ترې قربان شه    نور چا وړي نه دي خپل احباب را څخه یووړ
خط دي تور حرفونه مخ دي پاڼې د کتاب دي    شغل دي کتاب دي بل کتاب را څخه یووړ
هر اسباب چه ما څخه د زهد د پرهیزو    واړه تا د حسن په اسباب را څخه یووړ
کړي ما رحمان په زړه کښي نقش د محراب و    ستا ابرو یو نقش د محراب را څخه یووړ

# ز

لکه کاندي په کوترو نظر باز هسي زه یم د دلبرو نظر باز
زه نور چا وته د راز خبري نه کړم بې هغو چه موي مژگان لري دراز
بل بادشاه لره محال دي ملك د زړونو مگر مخ د چا محمود شي خال اياز
ستا د زني تر سيب پوري را ښکاريږي نوري زني د خوبانو لکه پياز
د تصورير له گلو طمع د بوي مه کړه له منقوشو مرغو نه خيژي آواز
هغه يار که په خپل ناز خوښ و خور وي زه هم خوښ يم هميشه د يار په ناز
که څوك آه و فرياد ښه گڼي په عشق کښي زه په عشق کښي دغه کار گڼم غماز
ښادي هر چري ده غم په اندازه وي هسي غم د دې دنيا وي په انداز
نيستي واړه د هستۍ په دنبال گرزي نه ډوبيږي په اوبو کښي تش جهاز
دا قاعده ده لکه لوړ همره ژور وي بو صورت دي هم نشيب شي هم فراز
هميشه مي لاس نيولي دي دا خواست کړم چه مدام دي د يار ناز وي څما نياز
چه يکسان گوري هم شاه و هم گدا ته هسي يار دي د رحمان غريب نواز

که بې ځايه زرکي نه وکښي آواز نه صياد څني خبر وي نه شهباز
لکه له دې خبري هسي معلوميږي چه خپل صوت دي هر سړي لره غماز
د منصور و حال ته گوره حال ئې څه دي خداي دي فاش د هيچا نه کاندي پټ راز
دريغه دريغه که ورستي عقل وړنبي وي د انجام خبري نه شي په آغاز
نيك عمل د عالمانو نيك فرزند دي خداي څوك مه کړه شراب خور و قمار باز
چه فرزند ئې شراب خور و قمار باز شي نور ئې کانې شي د پلار په خونساز
خداي له هسي زاهو زاده امان وکړ چه بې دين بې ديانت شي بې نماز
هچه منکر پرې اعتراض کولي نه شي دا دي شعر دي رحمانه که اعجاز

بد اختر به نیك اختر نه شي هر گز    مرغچیچ به دُر گوهر نه شي هر گز
که مکان ئې په آسمان وي غزا وشوه    ستاره به شمس و قمر نه شي هر گز
که ئې اصل له یوې زمکي وي څه شو    بید به سرو و صنوبر نه شي هر گز
که همه عمر باران ور باندي اوري    خس به گل د پیغمبر نه شي هر گز
له نا اهلو د وفا طمع و مه کړه    گنده نل به و نیشکر نه شي هر گز
که تور غر له ځایه خوزي و به خوزي    ولي نور به مقدر نه شي هر گز
د رحمان په باب چه وشو هغه وشو    مکرر به دا دفتر نه شي هر گز

# س

که ځوك فخر كا په ننگ و په ناموس	دا په عشق كښي نه ارزيږي يو فلوس
که اغوستي ئې زري جامې دي څه شو	گڼه يا مرغ زرين دي يا طاوس
که ئې تاج وي په سر ايښي غزا وشوه	په نظر ځما هدهد دي يا خروس
نه ئې فهم فراست وي نه ئې عقل	خالي نقش لكه عكس د معكوس
نه ئې مغز نه دانه وي په خرمن كښي	عبث هسي خالي لوني په سر بوس
د مجاز له ياره طمع د خير مه كړه	تمامي شر و شدت دي د الوس
وداني ئې همه واړه ويراني ده	راشه وگوره مانۍ د دي قيانوس
که ځما په گفتگو كښي زيات و كم وي	ځوك دي گڼ كا په دا ښهر كښي جاسوس
ساقي جام د باده راوړه چه بيخود شم	خداي ځوك مه كړه په خودۍ كښي محبوس
که ځوك وغواړي تمامه دنيا واړه	ځما يار غوندي به نه وي بل عروس
رحمان حسن د يار وينم په پرده كښي	نه پټيږي نور د شمع په قانوس

ويښته سپين، سترگي تاريكي، غاښ كنډاس	نه وگاږې د دنيا له چارو لاس
په هر لوري چه ئې مومې پسي درومې	نه په چپ لوري صرفه كړې نه په راس
يو ويښته د عقيدې دي په تن نشته	سر تر پايه هسي ډوب يې په وسواس
خداي رازق گڼې او رذق گڼې له كسبه	په دا شناخت و ځان ته وايه حق شناس
هسي رنگ په مذبذب صفت موصوف شوې	نه پوهيږمه چه ناس يې كه خناس
په دويي كښي به ور نه شې تر توحيده	كه پيشوا كړې مهتر خضر مهتر الياس
واړه زهر قاتل نغرې كه پوهيږې	چه ته بې له خدايه نغرې هر انفاس
امر دا دي چه له نهي لاس كوتاه كړې	او كه نه وي خپسر وگڼه مواس
خير دا دي چه له سره وجار ووزې	په دا چاره كښي هيڅ نشته كوز و پاس
كه ځما ويل دروغ او كوز و پاس وي	ته پخپله په خپل زړه وكړه قياس
له سړيه غرض واړه سړيتوب دي	نه چه پټ وي د سرو زرو په لباس
څه په دا به عراقي او تركي نه شي	كه په خره باندي ځوك سور شي كه په آس

د تشنه خوله اوبو سره مطلب وي    نه تش ايښي بې اوبو د زرو طاس
هر زاهد چه په ريا زهد نازيږي    د خربښت گمان ئې کيږي په آماس
اي رحمانه که څه کار دي خو د دين دي    نور کارونه بې وفا دي بې اساس

تير شه درست عمر ځما په دا هوس    که مي پوښتې چه څوك يې يا څه کس
يو پرسش د هغه يار را لره بس دي    که څه کس وي خو يو ويې ور لره بس
هزار حيف دي چه په هر نفس ترې تښتم    هغه لور ته چه مي تله دي هر نفس
چه ئې زه په هر نفس له خدايه غواړم    هغه کله کله وينم په ډير پس
که يو خس وي په محتاجو لکه غر شي    څوك دي نه کا خداي محتاج د يوه خس
هر مرغه په خپله جاله کښي هماي دي    که قارغه که مښگيرك دي که ققنس
که شهباز لره سينه ده د تنزري    عنکبوت لره سينه ده د مگس
خو چه خاورو لره ورشي برابر شي    که چا غوندي وي اغوستي چا اطلس
هم هغه مي خندوي چه ژړي مي    تل څوك نشته د رحمان فرياد رس

# ښ

هسي بې له ياره زه يم په جهان کښ　　چه مي نه شي ځاي په مځکه په آسمان کښ
سره ګلونه د چمن راته سور اور شي　　چه قدم بې ياره کيږدم په بوستان کښ
چه ئې مړ نه يم له ډيري بې نيازيه　　حيرانيږم د ناتوان صورت په توان کښ
که هر څو فکر له ځانه سره وکړم　　هيڅ د صبر طاقت نه وينم په ځان کښ
هيڅ ساتنه د سر کښ خاطر را نه شي　　څوك ساتلي شي بڅري په ګريوان کښ
تر هغه به بل نادان په جهان نه وي　　چه څوك مهر وفا غواړي په نادان کښ
که ئې سل ځله په ځار و قربان بولم　　غوړ رانه باسي په ځار و په قربان کښ
هسي رنګ ځما په ډيره ژړا خاندي　　لکه ګل د پسرلي خاندي په باران کښ
جوهري شي در و لعل کاندي پرڅيره　　چه مي کښيني د دوو سترګو په دکان کښ
چه مي هيچري په خوا په خاطر نه وو　　زمانې راته څرګند کړه په زمان کښ
چه په وصل کښ ئې اوښي نه وڅيړي　　ترو به حال د رحمان څه وي په هجران کښ

زړه مي بايلو ستا په مينه محبت کښ　　عاشقي دي زهر راکړه په شربت کښ
لار ځما و يار ته مه تړه ناصحه　　ما موندلي دي دا يار په ډير محنت کښ
که صورت د هغې مستي څرګند شي　　عقل هوش به دي هيڅ نه وي په صورت کښ
که د عشق تر کمره پريوزې سر به بايلې　　ته چه ما ته غاښ چيچې په نصيحت کښ
زه توبه په هغه تير عمر وکاږم　　چه صرف شوي دي بې ياره په غفلت کښ
د آشنا د ميني پت به مي مات نه شي　　که مي سر له تنه درومي په دا پت کښ
له ادبه ئې و مخ ته کتی نه شم　　خداي را پيښه جدائي کړه په وصلت کښ
په قيامت که څوك له نيته پوشيده شي　　زه د يار د کوڅې خاوري يم په نيت کښ
د درګاه په خاك نشينو سختي نه وي　　د غمونو دخل نشته په جنت کښ
لکه زه چه ستا د در په خاورو خوښ يم　　خوښ به نه وي سلطانان په سلطنت کښ
د دنيا له دولتونو بې پروا يم　　زه رحمان د عاشقۍ په ښه دولت کښ

مدام ناست یم وچ گوگل سترگي په نم کښ   عشق را وښود بحر و بر په خپل حرم کښ
ما چه رحم ستا د توري په خوله کښل کړ   نور مي دا لذت بیا نه موند په مرهم کښ
خود مجنون چه سر په پښو د لیلي کیښود   سر فراز شه په عرب و په عجم کښ
زورآور مدام غالب وي په کم زوري   زه له نوره غمه خلاص یم ستا په غم کښ
لکه زه چه مستغرق یم ستا په غم کښ   بل به نه وي په جمله بني آدم کښ
لکه مړي د ژوندو تر میانه پروت وي   هسي بیل یم له عالمه په عالم کښ
هیڅ صحت مي د دم گرو په دم نه شي   هم په دا چه ځما دم دي ستا په دم کښ
نه مي بې تا تگ و پونه جست و جو شته   مراد مي ته یې په هر دم په هر قدم کښ
که نصیب مي شي کوغالي ستا د سپیو   و به نه کړم نور نظر په جام د جم کښ
زړه مي هسي ستا په زلفو پسې ورك شه   لکه غوټه د چا پریوزي په تور تم کښ
سره په وینو د سرو گلو په څیر زانگي   هزار زړونه ستا د زلفو په هر خم کښ
زه رحمان کناره خوښ یم له عالمه   باري ستا سترگو رسوا کړم په عالم کښ

مغرور مه اوسه د عشق په کار و بار کښ   هر خسنړي تیره تیغ دي په دا لار کښ
دا سور گل به دي دستار په وینو سور کا   چه دي اینښي زمانې دي په دستار کښ
مخ د ترکو چه تر آب حیات صاف دي   زه دې آب حیات سوي یم په نار کښ
چه د اوسپنو دانه پرې اوبه کیږي   ترو ځما د هستۍ څه دي په دیدار کښ
چه په هر وار ئې زه سترگو ته نظر کړم   لاس مي وللي دي له ځانه په هر وار کښ
یاره ته چه له ما صبر و قرار غواړې   عاشق کله وي په صبر و په قرار کښ
که مي سر و مال د ستا په مینه درومي   زه تر سر و مال تیر یم په دا کار کښ
ستا له دره له دیاره به وا نه وړم   څو و نه مرم ستا په در و په دیار کښ
کمبختان د یار په وصل کښ مهجور دي   د وچ ډگي بهره نه وي په بهار کښ
مفلسانو لره عین کوهستان دي   که همه عمر ئې کور وي په بازار کښ
و عیب جوي ته واړه عیب څرگندیږي   ښایسته که ځان یوسف کا په سنگار کښ
چه هنر عاشقۍ ئې خداي نصیب کړ   بې هنره نور څه نه ویني په یار کښ
دا داغونه د خپل زړه ور لره بس دي   څه حاجت دي د رحمان په لاله زار کښ

هسي خوښ يم ستا د در په خاکستارۍ کښ
لکه خوښ وي سرداران په سردارۍ کښ
عاشقي که نورو خلقو ته خواري ده
ما مونډلي دا دولت دي په خوارۍ کښ
و بيمار ته که ناخوښ وايي وګړي
خوښ يم زه د ستا د عشق په بيمارۍ کښ
د خپل بام و دروازې وته نظر کړه
هسي سترګي دي څما په بيدارۍ کښ
يار د يار له سترګو اوښي پاکيزه کا
تا جاري کړې څما اوښي په يارۍ کښ
ما له ډيري ناچارۍ و يار ته شا کړه
مړي عذر دي په ډيره ناچارۍ کښ
غم به هيڅ يوه هوښيار خوښ کړي نه وي
ما خوښ کړي دي ستا غم په هوښيارۍ کښ
د رحمان اوښي به څه رنګ په قرار وي
چا ليدلي دي درياب په قرارۍ کښ

زړه مي ډوب ډوب کيږي ستا د غم په غلبلو کښ
هسي لکه څوك چه مستغرق شي په اوبو کښ
ستا د عشق له موجه هيڅ لوري وتی نشم
دواړه لاس مي پريواته د عشق په لانبو کښ
سل توبې مي ماتي کړې وا نه وښتم له شقه
څه ويسا مي نوره پاتي نه شوه په توبو کښ
ته چه له ما درومې دا د اوښو باران ګوره
رخ د سفر هيڅ نه دي په دا ګڼو شيبو کښ
له يوه سپوږمۍ نه په آسمان کښ هزار ستوري
بې تا څوك څه کاندي د خلقو په جنبو کښ
عشق و عقل دواړه سره ضد دي که پوهيږې
کله کړي آرام د اور بڅري په پنبو کښ
هر څوك چه د عشق په آتش څان سيزي رحمانه
خداي دي ابراهيم غوندي څوك نه کا په لنبو کښ

د بلبل له حاله زده کړه په خزان کښ
بيا د ګلو تماشا کړه په بوستان کښ
څو دي تير تلخائي تر ستوني نه شي
شيريني به خوند در نه کا په دهان کښ
ما په هجر کښ لذت د وصال بيا مونډ
له يوسفه ملاقي شوم په زندان کښ
لکه متن له معني معني له متنه
يار هم هسي دي څما په دل و جان کښ
عاشقي آسانه مه ګڼه خبر شه
سر بازي ده هر نفس په دا ميدان کښ
د ناتوان له ناتوانيه وويريږه
که هزار څله توانا يې په خپل څان کښ
هم هغه به پس له مرګه آزاريږي
هر چه بل آزار وي په دا جهان کښ
په رحمان باندي بې ياره هسي حال دي
لکه حال د زندانيانو په زندان کښ

ستا د ميني گوهر نشته په هر آب کښ مگر بيا موند شي د اوښو په درياب کښ
که ته وينې ځما پټې څښتې دلبره رنگ د لبو دي گواهي لي په دا باب کښ
په هر ځاي چه ستا د لبو نوم آغاز شي د لاله و باران اوري په احباب کښ
له خسته زړونه به څه دلستاني کا د خراج گنجايش نشته په خراب کښ
زه حيران د ستا د وروځو په تور خال يم کافر څشکل سجده کا په محراب کښ
گل له ډيري باريکۍ په شبنم خور شي نازکان زړه بد وي په صاف ځواب کښ
د بهار په گلو اوري بارانونه د څڅويکي طاقت نشته په حباب کښ
د رحمان غلطي وبخښه اې خدايه د اوترو چاري نه وي په حساب کښ

ښايسته مخ وي تور کودي شي په پيرۍ کښ سم قامت وي کوږ لرگي شي په پيرۍ کښ
لکه شمع د سحر آفتاب د ژمي هم بې تاب و هم زيړي شي په پيرۍ کښ
يو طرف ته ئې سر ريږدي بل خوا درومي خپل صورت تمام پردي شي په پيرۍ کښ
د مرده ؤ په حساب وي غزا وشوه که څرگند ليده ژوندي شي په پيرۍ کښ
مړ لا ښه دي پس له مرگه بيا ژوندي شي نشته دا چه څوك زلمي شي په پيرۍ کښ
که څه وخوري لکه زهر نه هضميږي نه څه څښي نه څه خوړي شي په پيرۍ کښ
دا ځواني ده چه څه اوري يا څه ويني نه ليدې نه اوريدې شي په پيرۍ کښ
اې رحمانه پيري هسي عاجزي ده که رستم وي زړه پرې سوي شي په پيرۍ کښ

# ص

گوره څه بلند مقام دي د اخلاص　　چه جهان واړه غلام دي د اخلاص
که له زمکي و آسمان ته خاته گران دي　　دا سفر په یوه گام دي د اخلاص
چه خبر کا مخلصان له علم غیبه　　دا همه واړه الهام دي د اخلاص
د رواج و رسم عمر مدام نه وي　　لکه عمر چه مدام دي د اخلاص
بې اخلاصه حلاوة د اسلام نشته　　که اسلام دي خو اسلام دي د اخلاص
څه عجب دي که مستان وي ترې چاپیره　　هر ساقي څخه چه جام دي د اخلاص
څه عجب دي له هما ئې په دام نښلي　　هر صیاد څخه چه دام دي د اخلاص
پس له مرگه به دا مهر و اخلاص نه وي　　که اخلاص کړې نن هنگام دي د اخلاص
د رحمان کلام په دا سبب شیرین دي　　چه ئې هر کلام کلام دي د اخلاص

هر ساعت چه څه گذران دي بې مخلصَ　　هزار بار ارمان ارمان دي بې مخلصَ
که څوك وایي چه له ځان شیرین څه نشته　　ولي ما ته ځان تاوان دي بې مخلصَ
لکه شمع په ورځ مرم و د شپې سوزم　　تمام عمر نقصان دي بې مخلصَ
په بلبل کله بهار کله خزان وي　　په ما کل واړه خزان دي بې مخلصَ
که شبنم د نور را باندي اوري　　په ما کاڼي د آسمان دي بې مخلصَ
ډېر غمونه د هجران را باندي تیر دي　　اوس یو دم را باندي گران دي بې مخلصَ
د آشنا د میني اور و ما ته گل دي　　کل د اور په دود سوزان دي بې مخلصَ
په وصال کښي مي نه مرگ لیده نه تبه　　اوس مي مرگ په هر زمان دي بې مخلصَ
زه حیران د هغو خلقو په روزگار یم　　چه ژوندون ورته آسان دي بې مخلصَ
د رحمان د زړه دمه په هیچا نه شي　　مسافر غوندي حیران دي بې مخلصَ

# ض

که ته نه کړې په بل چا باندي غرض بل به نه کاندي په تا باندي غرض
که گدا د بل په غولي غرض نه کړي سپی به نه کړ په گدا باندي غرض
په ساحل کشتي د هیچا نه ډوبیږي که څوك نه کا په دریا باندي غرض
خلوتیان په خپل خلوت کښي فراغت دي د رسوا دي په رسوا باندي غرض
دا دنیا په احمقانو ده ودانه دانا نه کا په دنیا باندي غرض
زه رحمان د عشق په درد کښي هسي خوښ یم چه مي نشته په دوا باندي غرض

# ط

طمع مه کړه په دنیا کښي د نشاط بیا به نه مومې نشاط په دا بساط
لکه راغلې بیا به هسي ځني درومې دا جهان د رهروانو دي رباط
تر هر گام لاندي کوهي دي د دې دهر ایښي بویه هر قدم په احتیاط
و دانا وته په دا جهان ښکاریږي هم جنت و هم دوزخ و هم صراط
په عاشق به هیڅ دهشت د رقیب نه وُ که ئې نه کړي له خوبانو اختلاط
له کم ذات بې دیانته بې نمازه طمع مکړه د نیکۍ د یو قیراط
غم د ترکو تر رحمان هسي چاپیر شه لکه وسکني جامه په چا خیاط

# ظ

اومه کله دي پاخه وايي واعظ هر چه وايي واړه ښه وايي واعظ
دی چه ما له خپله یاره لري باسي نور به څه راته اومه وايي واعظ
جار واته ځما له یاره ډیر مشکل دي زیاتي څه له دوباره وايي واعظ
په خوږو پستو خبرو ئې غلط شوې دا خواږه خواږه ترخه وايي واعظ
څوك به څه باور د ده په نصیحت کا چه له یاره جار واته وايي واعظ
زه بې عشقه بل یو کار کولي نه شم ډیر له عشقه تښتیده وايي واعظ
اعتبار ئې په نرمۍ په ګرمۍ مه کړه دا توده توده ساړه وايي واعظ
اوریدونګي ئې رحمان د ویل نه یم بهتر دا دي چه نور نه وايي واعظ

# ع

په تندي چه آتش بل کړم مدام شمع ځکه بیا موده له خلقو آرام شمع
په انور ئې منور اهل ابصار شو لا به کله شي ښکاره د انعام شمع
پتنګان ئې لور په لور تر مخ څرخیږي ځکه نه کوي په سول کښې آرام شمع
وسیزه ته ځان ځما په شعله باندي کړ پتنګ ته په رموز کښې کلام شمع
ستا مجلس د خاص الخاصو سر فرازو د رحمان په څیر نه مومي هر عام شمع

# غ

هر یو ګل د ستا د باغ روشن تر دي تر چراغ روشن تر دي تر چراغ هر یو ګل د ستا باغ
ستا د باغ و د بڼ زاغ په نظر ځما همای دي په نظر ځما همای دي ستا د باغ و د بڼ زاغ
د دردمندو په دماغ ستا د در خاوري عنبر دي ستا د در خاوري عنبر دي د دردمندو په دماغ
د عاشق د تېت داغ په آسمان د عشق آفتاب دي په آسمان د عشق آفتاب دي د عاشق و تېر داغ
د رحمان د زړه فراغ نه شي نه شي بې خوبانو نه شي نه شي بې خوبانو د رحمان د زړه فراغ

# ف

اورنګ زیب و شاه جهان غوندي اشراف
صدقه شه تر منصور غوندي نداف
که د تن په لويي لوي دي ته ئې څه کړې
مه کړه خداي چه کوه طور شي کوه قاف
بلهوس دي عاشقۍ ته هوس نه کا
دا دروغ دي چه زر دوز شي بوريا باف
د مکې په بزرګي کښې هيڅ شك نشته
ولي خر به حاجي نه شي په طواف
که په سل دريا به غسل د ځان وکا
ګمان مه کړه چه به سپی شي پاك و صاف
کشتي هم چه ډېره ډکه شي ډوبيږي
د مسرف په ځان بلا شه خپل اسراف
صابرانو صبر پرېښود حريصان شول
نه څه عدل شته په چا کښې نه انصاف
دا څلور واړه مذهبه سره يو دي
ما و تا په کښې پيدا کړ اختلاف
د همه واړه ملکونو څښتن خداي دي
که دروغ دي که حنّت دي که اعراف
شهيدان نه دي هغه خون فروشان دي
چه خوني ته خون بهانه کا معاف
د کاذب ژبه په خوله کښې وچه ښه ده
لکه توره د لرګي وي په غلاف
د ديوال په سر به څو زغلي تر کومه
دروغژن چه په دروغو وهي لاف
آب و تاب د ناکره مهر وي همره
څو نظر پرې شوي نه وي د صراف
د دنيا په دولت ناز مه کړه رحمانه
دا يو موي دي په نظر د مو شګاف
مدح و هجو د حبيب و د رقيب کړم
رحمان نه زده بله هجو نور اوصاف

# ق

چه پاي بند شه د ليلي په اشتياق مجنون واچاوه و نورو ته طلاق
چه د مې و د طرب په خوند خبر شه فراموش کړه صوفي نفل د اشراق
جام د ميوو دي يا رقص د خوبانو په هر ځاي چه بله جمع شي عشاق
پهٔ نسيه و نظر نه کاندي بې نقده که څوك حوري ورته ستايي يا براق
چه حاصله د دلبر يگانگي شي د دويۍ خبري نه کاندي مشتاق
حرکت له ځايه نه کا لکه شمع که ئې اور په سر بليږي په تاراق
خوښ وي هسي د خپل يار په درد و غم کښي ته به وايې چه بادشاه دي د آفاق
هسي محو وي د عشق په مي ناب کښي چه خبر نه وي په وصل په فراق
که ظاهر په صورت وي په معني نه وي لکه کښلي د لا لفظ وي په اوراق
څو ئې تن په کار و زار کښي فنا نه شي نه جار باسي مخ آسونه د عراق
د عراق آسونه کار په اشارت کا په وهل په کوتل کار وي د ايلاق
چه خداي پوه کړل د ښو په څښل پوه شو چه پوه نه شو نه پوهيږي په شلاق
که ئې سر ځي که ئې مال ځي خداي دي نه کا د طالب و مطلوب تر مينځ نفاق
د قسمت پارځي په لاس نيولي ناست يم نه پوهيږم چه به جفت شي که به طاق
ته چه پند وايې ناصحه و رحمان ته کاشکي نور کړې هغه کښلي د ميثاق

خدايه څه شه هغه ښکلي ښکلي خلق په ظاهر په باطن سپين سپيځلي خلق
هيڅ خندا مي له دې خلقو سره نه شي ژړوي مي هغه تللي خلق
خبر نه يم چه و کومه خوا ته لاړ شه ليدل نه شي هغه ما ليدلي خلق
لکه ځگ چه د اوبو په مخ کښي درومي هسي درومي په دنيا راغلي خلق
دريغه يو ځله خو بيا په دنيا راغلي له جهانه په ارمان وتلي خلق
هزار حيف دي چه په خاورو کښي لاړه شي په چووا و په چندڼ لړلي خلق
رحمان هسي گوښه خوند له خلقو بيا موند چه هر گز نه دي دا خوند موندلي خلق

# ك

زړه مي تراشي د بڼو په تيره نوك ‌ ‌ ‌ ماتوي مي دو ديرش غاښ واړه په سوك
په غمزو د تورو سترگو يم وژلي ‌ ‌ ‌ ژوبل ژوبل پړوكي پړوكي يم ټوك ټوك
كه نارې وهم كه خاوري په سر لونم ‌ ‌ ‌ ناروا شه كه پروا لري يو څوك
لكه گل چه څوك د طفل په لاس وركا ‌ ‌ ‌ هسي رنگ دي ځما زړه كړ شوك په شوك
د آسمان په نيلي سور لكه آفتاب شي ‌ ‌ ‌ د زربفتو دستار كيږدي په سر هوك
كه له ډيره درد و غمه مي زړه وچوي ‌ ‌ ‌ ورته هيڅ دي ځما درد و ځما دوك
درست جهان ئې په غم ډوب كړ سر تر پايه ‌ ‌ ‌ كه گدا دي د دې دهر كه ملوك
كه انصاف لري په زړه كښي منصفانو ‌ ‌ ‌ راشي گورئ د دلبرو دا سلوك
زه به ولي د خپل يار ثنا نه وايم ‌ ‌ ‌ چه سحر سحر نارې وهي تل غوك
چه مين د دلبرانو په جمال شوې ‌ ‌ ‌ اي رحمانه ځان وژاړه كوك په كوك

په ښايست ځما ديار نه دي خبر څوك ‌ ‌ ‌ كه خبر شي پرې به نه يږدي دغه در څوك
د دنيا چاري همه واړه فاني دي ‌ ‌ ‌ بر ناحقه خاوري لوني په خپل سر څوك
چه قبول شي په درگاه د مهرويانو ‌ ‌ ‌ د هغه په خير به نه وي بختور څوك
كه ځما د يار په مخ د چا نظر شي ‌ ‌ ‌ و به نه كاندي بل خوا وته نظر څوك
د ديدن طاقت ئې هيچا څخه نشته ‌ ‌ ‌ و آفتاب ته كتي نه شي برابر څوك
كه هر څو دلبران ډير دي په جهان كښي ‌ ‌ ‌ بل به نه وي ځما يار غوندي دلبر څوك
عاشقي يوه پايه ده عجائبه ‌ ‌ ‌ دغه كار كولي نه شي هم هر هر څوك
له هجرانه بله سخته بلا نشته ‌ ‌ ‌ خداي دي نه كاندي زخمي په دا نشتر څوك
مخ به بل خوا ته هرگز و نه جار باسي ‌ ‌ ‌ چه شي ستا په خمارو سترگو ابتر څوك
و به نه رسيږي تا ته په آسانه ‌ ‌ ‌ ستا په غم چه خاوري نه كاندي په سر څوك
ارمانونه به كوي زار زار به ژاړي ‌ ‌ ‌ چه حاصله گونټه نه كا په شش در څوك
همره نوم د عاشقۍ ور باندي مه يږده ‌ ‌ ‌ چه د يار په غم كښي نه شي قلندر څوك
هغه نه كاندي نظر و سيم و زر ته ‌ ‌ ‌ چه په لور د خپل آشنا كاندي نظر څوك
په گلونو د گلزار به ميل نه كاندي ‌ ‌ ‌ چه خوبونه كا د يار په خاكستر څوك

بې رهبره يون د عشق په لاري گران دي     دلته بويه چه پيدا کاندي رهبر څوك
چه بيلتون په سترگو ويني آشنائي کا     د رحمان په څير به نه وي بې هنر څوك

چه مشغول نه وي د ترکو په جمال څوك     نور به څه کا په دنيا کښي اشتغال څوك
چه ئې قيل و قال له ياره سره نه وي     له نور چا سره به څه کا قيل و قال څوك
د بل خط په عبارت به نظر نه کا     چه نظر وکاندي ستا په خط و خال څوك
چه په اصل کښي خداي نه دي پيدا کړي     ترو به څه غواړي د ستا د مخ مثال څوك
نور خوبان دي ست تر مخه پوري هسي     لکه بل کا د آفتاب په مخ مثال څوك
چه عنقا شو اهل دل په دا دنيا کښي     ترو به څه وايي و چا وته احوال څوك
که عاشق په عشق کښي ژاړي هيڅ گرم نه دي     په دا هسي درد کښي نه لري مجال څوك
سر خروئی د هر سړي په جگر خون ده     نه هغه چه په سر واچوي سور شال څوك
مخ روښي دي د عاشق په خپلو اوښو     په دانه شي چه ئې مږي په رويمال څوك
سړی بويه چه په نيك عمل نازيږي     نه چه ناز کا د دنيا په ملك و مال څوك
د دنيا چاري فاني دي مرد هغه دي     چه نظر کا په حرام و په حلال څوك
هر چه کر کا دا وربوشو غنم غواړي     له خاطره دي بيرون کا دغه خيال څوك
که ئې شعر د رحمان مهمند تر غوږ شي     غوږ به نه باسي په شعر د خوشحال څوك

چه علاج کولي نه شي د قسمت څوك     ترو به څه وايي و چا ته نصيحت څوك
غم د چا په ځان پيرزو دي باري څه کا     چه د خداي په کړه کښي نه لري قدرت څوك
هغه چاري چه موقوفي په تقدير دي     کړي ئې نه شي په محنت په مشقت څوك
که نظر کا و قضا و هم رضا ته     په هيچا باندي دي نه کا ملامت څوك
د مطلوب جفا واړه هنر دي     څه پوهيږي د حکماو په حکمت څوك
د ابليس و رياضت ته دي نظر کا     چه غرور کا په طاعت په رياضت څوك
علت لاړ شي عادت نه ځي له سړی نه     خداي ديي نه کاندي په بده چار عادت څوك
زه رحمان د بيلتانه سيلاب يم وړي     که لاس را کاندي د خداي په محبت څوك

ماتوي مي خوله په سوك    خراشي مي زړه په نوك
که ناري وهم که ژاړم    پروا نه لري يو چوك
راشي گوري منصفانو    د دلبرو دا سلوك
لکه گل په لاس د طفل    ځما زړه کړي شوك په شوك
د چشمانو په غمزه ئې    ژوبل ژوبل يم ټوك ټوك
د فلك په توسن سور شي    دستاركيږدي په سر هوك
هيخ اثر ور باندي نه کا    د دردمندو درد و دوك
اې رحمانه چه عاشق شي    ځان دي ژاړي کوك په کوك

چه په زړه مي تور لحد شي د خپل خاك    بې مزه مي شي هم خوب هم مي خوراك
چه د خوب او د خوراك مزه شي ورکه    نور له مرگه برابر شي هغه ژواك
غلط وايي چه څوك عمر ورته وايي    هغه عمر چه تيريږي په پخساك
نن سپيره په خاورو ډکه خوله بهتر يم    چه آخر مي دا خوراك دي دا پوشاك
ځاي لري که ځان ژوندون په زمکه خښ کړم    چه مي پس له مرگه ځاي دي يو مغاك
گويا شوي دي هغه چه شدني دي    زه پخوا تر هلاکته يم هلاك
زړه چه روغ وي گريوان کله څيراوه شي    له گريوانه معلوميږي د زړه چاك
تن و ځاي و جامه هله پاك پکار دي    چه وړنبي شي د چا زړه له غيره پاك
سړي بويه چه درون بيرون ئې يو وي    نه هغه چه بيرون زر وي درون لاك
له سړيه غرض واړه سړي هوښ دي    نه چه سر کښبي ئې طره وي يا مسواك
د دنيا چاري همه واړه فاني دي    څوك يو دوه ورځي خوشحال وي څوك غمناك
په ساعت کښبي څوك خوشحال کا څوك غمناك کا    دا خويونه هميشه دي د افلاك
چه څه کاندي واړه خداي دي نور څه نشته    رحمان څه دي څه ئې واك څه ئې ادراك

# گ

زغره واغونده ملا وتړه په جنگ  دغه پسه معرکه کوه د ننگ
و بې ننگ وته د ننگ خبري مه کړه  یا ځان وگڼه په خپلو وینو رنگ
ننگیالي چه یو ځل مخ کا په یو لوري  نور هیڅ نهویني کوهي وي که گرنگ
هیڅ له ځایه له جهانه خبر نه وي  چه څراغ په نظر کیوزي د پتنگ
د بلبلو و چمن وته پرواز وي  سمندر کا مدام اور وته آهنگ
که جهان و بې هنرو ته فراخ وي  یو لحد دي هنرمند و لره تنگ
هغه ښهر جوهري لره زندان وي  چه یکسان وي په کښې لعل و مردار سنگ
آسمان زمکه دواړه ژامي د نهنگ دي  څه به زیست کا څوك په خوله کښې د نهنگ
په ښادي ئې هیڅ ښاد مه شه که دانا ئې  غم ښادي دي د دې دهر څنگ په څنگ
که رحمان د هغو تللیو وصال مومي  تیر به نه کا په دا دور کښې یو درنگ

# ل

ایښي مي پر سر دي ستا د مخ د میني گل     بیا میتور لیمه دي ستا د زلفو تور سنبل
ته چه آئینه په لاس کښي واخلې حیرانیږي     زه له کومه راوړم صبوري او تحمل
گرزې په چمن کښي منگل ډکه وړې د گلو     خداي زده چه گلونه وړې که زړونه په منگل
هم مي مښك لیدلي هم عنبر دي په جهان کښي     شاباش شاباش شاباش ستا په زلفو په کاکل
نه به ستا د مخ په څیر گلشن وي چا لیدلي     نه به وي ځما په څیر آهونه د بلبل
هسي تغافل کا ستا په جور و په جفا کښي     خلق حیرانیږي د رحمان په تغافل

هیڅ مي نه کړه په دا عمر کښي حاصل     هسي پاتي شوم مردود و ناقابل
ما لا بوي هم د وصال موندلي نه دي     تش په توره مي خداي نوم کړ واصل
هسي ډوب یم د گناه په دریابونو     چه په سترگو مي و نه لیده ساحل
له وطنه مي په هر زمان وباسي     رقیبان ئې را پسې کړه محاصل
که بلا ده که جفا ده که وفا ده     دا همه واړه په ما کړه خداي نازل
د دنیا په پلیتۍ مي ځان پلیت کړ     حیف دي دا چه نه عالم شوم نه جاهل
توره ږیره مي شوه سپینه زه حیران یم     چه رحمان لا نه بالغ شوم نه عاقل

مه غوږ باسه د نا اهلو قیل و قال     پکار نه دي قیل و قال د بد سگال
یا به فخر په خپل اهل په نسب کا     یا به فکر کا د مال و د منال
یا به هسي پوچ گویي کاندي آغازه     چه مضمون ئې نه مردار وي نه حلال
د دانا او د نادان صحبت دي هسي     لکه گڼ شي و بله لعل و کوتي لال
لکه لعل و کوتي لال چه و بله گڼ شي     یا صحبت شي د عیسي و د جلال
هغه عمر چه تیریږي بې هم جنسه     ترو به څه وي د هغه عمر احوال
د دنیا چاري فاني دي مرد هغه دي     چه خبر شي په ثواب و په وبال
آب د سیند لا څه محال لري په تله کښي     د دنیا د چارو هیڅ نه وي مجال
د دنیا چاري په مثل خواب و خیال دي     څوك به څه کا اعتماد په خواب و خیال
لکه مال و ملك په خوب کښي ور څرگند شي     خو چه ویښ شي نه ئې ملك وي نه ئې مال
لکه ځگ چه د اوبو په سر لیده شي     که ئې واخلي هیڅ ور نه شي په چنگال
لکه دود چه غرونه غرونه څرگندیږي     تار په تار شي په یوه نري شمال

لکه یخ چه د سړو په زور شي جمع هیڅ ئې نه وي د آفتاب په مخ مجال
په یوه ساعت ئې ساز بیا ئې ویران کا خاوري ختې دي په لاس کښې د کلال
د مجاز په معشوقو کښې وفا نشته ما هزار ځله وکښلې دي دا فال
اعتماد ئې په ښادئ و په غم مه کړه نه ئې هجر په قرار دي نه وصال
ګاه تور کودي په مخ باندي را کیښږ شي ګاه ئې را کیښږ شي په مخ باندي رویمال
لکه مالګه چه څوك کیږدي په اوبو کښې زه هم هسي سر زده یم په مثال
چه د مرګ و تاخت و باخت وته نظر کړم صورت وینم د میږي په څیر یا مال
که وصال مي د یار بیا موند هاله سیال یم ګنه نه یم زه رحمان د هیچا سیال

بیلتانه دي هسي خوار کړ ځما دل چه له ځانه ئې ویزار کړ ځما دل
عاشقئ همره داغونه دي پرې اېښي چه تمام ئې لاله زار کړ ځما دل
چه د زلفو په کمند سره دي را کیښږ په بلا دي ګرفتار کړ ځما دل
ستا چشمانو په کښې هسي مقام وینو چه له غیره ئې ویزار کړ ځما دل
لاس و پښې د خلقو نسي دعا غواړي میني هسي منت بار کړ ځما دل
بې سببه چا آزار موندلي نه دي تا په څه سبب آزار کړ ځما دل
زه رحمان خو منت بار د عاشقئ یم چه مین ئې په دلدار کړ ځما دل

چه له نازه پوشیده لري چشمان خپل څه به ویني مقتولان و مظلومان خپل
چه ښکنځل راته به قهر قهر کاندي دا لا وګڼي په ما باندي احسان خپل
ګفتګو په اشارت کاندي له نازه کله اسم د چا اخلي په زبان خپل
په ګریبان باندي چه ټک وهي غوټئ عاشق کښیباسي لاسونه په ګریوان خپل
خریدار ئې له حیرته بې شعور شي چه د حسن رخت څرګند کا په دکان خپل
چه خپل مخ په آئینه کښې ور څرګند شي خود پخپله سرفرو کاندي په ځان خپل
چه هر څوك ئې عاشقئ وته هوس کا ګویا لوبې کا په دین و په ایمان خپل
هیڅ صرفه د چا په سر و په مال نه کا ما لیدلي دي پخپله مطلوبان خپل
مجنون ملك د عاشقئ خو هاله خپل کړ چه په اور باندي ئې وسو خان و مان خپل
هیڅ د سترګو غړولو خوند ئې نه وي چه رحمان په سترګو نه ویني جانان خپل

# م

ژوبل ژوبل د خوبانو په نگاه یم — لا تر دا نه زيات غوڅېږم چه پناه یم
چه يوسف غوندي هزار په كښي پراته دي — بنديوان د هغه سيب ذقن په چا یم
چه ئې قد و قامت ووينم په سترگو — عندليب په سهي سرود خپل آه یم
د سپين مخ د تورو څڼو له رغبته — منت بار د هر سفيد د هر سياه یم
د رقيب خبري وړم د يار دپاره — دعا گوي هم د نيك خواه هم د بد خواه یم
ښاخ د زلفو ئې پخپله خداي را ټيټ كړ — گنه زه د يار تر قد پوري كوتاه یم
بې له عشقه كه مي عيب كه مي هنر دي — نه خبر په عبادت نه په گناه یم
ځان هر گوره ناآكاه را څرگنديږي — له هغي ورځي را هسي چه آكاه یم
بې صبرئ كه يار په وصل كښي مهجور كړم — د پسرلي په مرغزار كښي وچ گياه یم
له اوله تېر ووهم بيا آه كړم — په نارو نارو خروس د صبحگاه یم
په جذبو جذبو ئې را كښوم و ځان ته — هغه يار مي كاهربا دي زه ئې كاه یم
لكه بار دوني پوخ شي ځني رژي — زه هم هسي بار تړلي سر براه یم
اوس مي ځاي په دا جهان كښي پاتي نه شه — خوزيدلي تر چهل و تر پنجاه یم
د رقيب علاج آسان دي بلا دا شوه — زه رحمان له خپله ياره ناويساه یم

كه مي خوك په فقيري شميري فقير یم — كه مي خوك په اميرئ شميري امير یم
د دلبر و صدقې لره ئې غواړم — هسي نه چه په دنيا پسې زهير یم
د خرقې خدمت مشكل دي او كه نه وي — زه هر دم و دغه چاري وته خير یم
هم پند اخلمه هم پند وايم هر چا ته — زه د ځينو يم مريد د ځينو پير یم
په هجران كښي خيال د يار را سره مل دي — په زندان كښي د يوسف سره اسير یم
په خندا كښي مي ژړا ده لكه شمع — له عالمه پټ پنهم د ځان په وير یم
آزادي تر دا په هورته بله نشته — چه بندي د يار د زلفو په زنځير یم
چه هميش په غوړ ناري د هجران اورم — رحمان ځكه د خپل يار و مخ ته ځير یم
خوشحالا و دولتا مي غلامان دي — زه رحمان په پښتو ژبه عالمگير یم

زه يو دم د ستا له غمه بې غم نه يم بې غم ستا له ذکره فکره يو دم نه يم
هر زيارت لره چه ځمه مراد مي نه يې زه زائر د ميخانې د حرم نه يم
ستا د در په تورو خاورو باندي خوښ يم بې تا خوښ په تماشا د ارم نه يم
چه د ستا په تماشا يم خبر شوي نور خبر په تماشا د عالم نه يم
بې د ستا له زيبا مخه و بل مخ ته منتظر د يوې ستني تر سپم نه يم
که د ستا د ښکلي مخ عاشقان ډير دي زه په واړو کښي اول يم دويم نه يم
که له غمه دي و نه مرم هاله وايه چه يا ديو يم يا دواب يم آدم نه يم
زړه مي ستا په غمزه غوڅ دي غزا وشوه که په لاسو په پښو روغ يمه گرم نه يم
سم قامت لکه الف يم په راستي کښي لکه غشي زه فساد لره سم نه يم
خم د زلفو يم محراب د کږو وروځو زه د مار و د لړم په څير خم نه يم
کم و بيش که مي له لاسه واقع کيږي يم سړي شکم لرم بې شکم نه يم
زه رحمان د بيلتانه له غمه ژاړم واقعه ده ډيره گرانه هيڅ گرم نه يم

زه دا هسي ديوانه او مجنون چا کړم له رواجه له رسومه بيرون چا کړم
نه پوهيږم چه دا چاري په ما څوك کا ليوني د خپل نگاه په افسون چا کړم
کومي سترگي کوم بانه کومه غمزه ده ډوب شهيد غوندي په خاك و په خون چا کړم
توان توفيق خو د فتنو را څخه نه وو په فتنو د تورو سترگو مفتون چا کړم
رحمان هيڅ له خپله ځانه خبر نه يم چه دا هسي رنگ زبون و محزون چا کړم

زه له دې دنيا له تلوني په شتاب يم لکه پاڼه د خزان پښه په رکاب يم
که هزار آبادي کړمه په جهان کښي غرض دا چه نهايت خانه خراب يم
که مي اصل د حياتو له اوبو دي بيا خو دا چه د اوبو په سر حباب يم
دا جهان قصاب خانه کړه خداي و ما ته پابسته ولاړ به غولي د قصاب يم
چه د خداي له معرفته خبر نه شم معلوميږي چه يا ديو يم يا دواب يم
که صورت مي د سړي دي زه ئې څه کړم په معنیٰ کښي د چارپايو په حساب يم
لکه بت چه په رڼو سترگو اوده وي هسي زه په بيداري کښي ورې خواب يم
په طاعت په عبادت مي زړه يخ نه کړ هميشه د معصيت په اور کباب يم
سر د خداي و عبات ته اېښوي نشم مدام ډوب د گناهونو په درياب يم
چه و خپلو گناهونو ته نظر کړم سزاوار د هر عذاب د هر عتاب يم

لکه څوك چه په خره سور وي مخ ئې تور وي　　زه هم هسي تر څښتن پوري بې آب یم
غزا وشوه که گفتار کوم په ژبه　　زه رحمان چه کردار نه لرم کذاب یم

په یوه غمزه د سترگو ئې فنا شوم　　سر تر پایه بې بنیاده بې بقا شوم
ما د یار له غمه دم وهلي نه دي　　که مي دم وهلي نه دي هم رسوا شوم
ښه چه تن مي توي تومنه شه په عشق کښي　　هاله څاڅکي د شبنم وم اوس دریا شوم
زه د یار و مخ ته گورم یار و ما ته　　چه داخل په تماشا شوم تماشا شوم
په هجران کښي که گدا وم کند په غاړه　　په وصال کښې ئې بادشاه د امرا شوم
بادشاهي د گدایانو په دعا شي　　زه رحمان ځکه بادشاه یم چه گدا شوم

تر هغه حده په هورته بد سړی شوم　　چه د درست جهان په سترگو کښي اغزی شوم
دنیا واړه خپله زیست و روزگار کاندي　　خو یو زه په دغه بار کښي کوړ لرگی شوم
تمامي جهان لمن را څخه نغاړي　　سپین زړوکي مي اغوستي تور کودی شوم
هیڅ حاجت د هنر نشته و نصیب ته　　غزا وشوه که مهمند یا داودزی شوم
د نوح زوي هم د نیك نیکه نمسی و　　گڼه زه هم د یو نیك نیکه نمسی شوم
کل وسواس له احتیاطه پیدا کیږي　　زه له ډیري هوښیاري نه لیونی شوم
اوس عطا د آدمیت را باندي وشوه　　چه رحمان د هغه یار د کوڅې سپی شوم

د هجران له ډیره غمه ولي نه مرم　　له دې هسي رنگ ماتمه ولي نه مرم
چه یو یار له بله یاره جدا کیږي　　د دې دهر له ستمه ولي نه مرم
چه په هر سحر ځما په ژړا خاندي　　له دې هسي صبحدم ولي نه مرم
یار چه یار په سترگو نهویني خو مرگ دي　　ترو زه بې له خپل صنمه ولي نه مرم
چه په لږه گرمۍ شا کاندي و گل ته　　له دې بې وفا شبنمه ولي نه مرم
چه د مرگ خواري په خوا لرې رحمانه　　لا پخوا تر دغه دمه ولي نه مرم

که مي ونماځي ساقي په یوه جام　　تر دا هور ته به نور څه وي احترام
ښه دي ما لره دا فیض د شرابو　　چه پرې ووینځم دا د لق ازرق فام
مي خواري که په عالم کښي بد نامي ده　　ما تر پښو دي لاندي کړي ننگ و نام

په میزان کښي یو سر لعل بل سر کاڼي مساوي ده عاشقي په خاص و عام
عاشقان د سپین رخسار د تورو زلفو څه پروا لري د کفر د اسلام
په مجنون باندي قلم راغلي نه دي که حلال ئې په مخ ورشي که حرام
حلال عشق دي په رحمان باندي راغلي په حلالو کښي مدام وي احترام

و محمود وته نظر کوه مدام چه غلام کړ خپلي میني د غلام
د نیکانو مدعا خو نیك عمل وي ساعت نه گوري که صبح وي که شام
چه د زړه حضور ئې نه وي په نمانځه کښي پکار نه دي مقتدي وي که امام
چه مجنون غوندي په مینه کښي صادق وي رحمان وایم په هغه باندي سلام
هم نغمې کاندي هم رقص کا هم خاندي د رحمان په شعر ترکي د باگرام

زه د یار په درد و غم کښي شادمان یم لکه گل د پریشانۍ په وقت خندان یم
ته ځما و بې کسۍ ته نظر مه کړه خداي ساتلي لکه گنج په بیابان یم
لکه ونه د ځنگل په میوه پوره په ویرانه ویرانۍ کښي آبادان یم
یو ویښته مي د صورت بې عشقه نه دي څوکیدار په هر نفس د خپل کاروان یم
د وصال مرغه د اوښو دانو راکړ لکه لعل و در په غاړه د خوبان یم
د کاملي عقیدې له برکته د دونهي په غاړه ناست شاه جهان یم
روښنائي مي په طلب کښي شوه حاصله شپه و ورځ لکه آفتاب په لار روان یم
چه صفت د تورو زلفو د آشنا کړم پلي سر په لویه لار د هندوستان یم
بې مینه مي هیڅ حال د صورت نشته لکه بې مال و متاعه تش دکان یم
د هوس بلبل ویسا را باندي نه کا د افلاس په کبل ډکي د خزان یم
دلبرانو وته خاك تر تلي لاندي د دې نور جهان په سر لکه آسمان یم
چه د یار په دیدن سر و مال ښندمه خلقو واورئ زه هغه عبدالرحمن یم
په هر دم کښي نوې نوې تماشا کړم زه رحمان د خداي وکړو وته حیران یم

په ښه خوي له بد خواهانو بې پروا یم په نرمۍ لکه اوبه د اور سزا یم
و هر چا ته په خپل شکل څرگندیږم آئینه غوندي بې رویه بې ریا یم

قناعت مي تر خرقې لاندي اطلس دي    پټ د درست جهان بادشاه ظاهر گدا یم
د غنچې په څیر په سل ژبو خاموش یم    لکه بوي هسي په پټه خوله گویا یم
په ژړا مي د خپل یار دیدن حاصل کړ    د شبنم په څیر له گل سره یکتا ینم
هم په دا سپینو جامو معلومیږم    لکه ابر هم گوهر یم هم دریا یم
دراز عمر مي حاصل شه له راستیه    لکه سرو مدام سبز و تازه پایم
که چا لار د عاشقي ده ورکه کړې    زه رحمان د گمرهانو رهنما یم

که هزار ځله نزدې د زړه په یاد یم    زه چه یار په سترگو وینم نا ښاد یم
که یار سل ځله وعدې د وصال وکا    زه له ډېري تلوسې بې اعتقاد یم
په جفا و په وفا ئې لارغه نه شي    پر حذر د ناز پرور په کړي داد یم
د بې نیازو په نیاز څه امید د کړو دي    زه پرون سلطان خسرو وم نن فرهاد یم
که د یار له لاسه اور را باندي بل وي    لکه شمع مستقیم په خپل استاد یم
بې مینه قراري را باندي زوك دي    شپه او ورځ په حرکت کښې لکه باد یم
که همه عمر مي یار په غیږ کښې ناست وي    زه له غمه به د هجر په فریاد یم
یو زمان مي د زړه مراد موندلي نه دي    پیدا کړي خداي په اصل کښې نا مراد یم
د وصال په یوه کال مگر بر پاي شم    د هفتې په هجر هسي بې بنیاد یم
چه ئې نوره نتیجه نشته بې غمه    حق حیران د عاشقۍ په دهه داد یم
په وصال کښې مي د هجر طمع نه وه    اوس حیران مستحیر په دا فساد یم
بې له عشقه چه مي پري شه د پوزي    گڼه نور له جملگي قیده آزاد یم
که مي پیري که مي پلوري چاره نشته    زه رحمان د ښایسته و خانه زار یم

زه د یار په درد و غم کښې غرقاب خوښ یم    په دا اور کښې بې طاقت و بې تاب خوښ یم
که ډوبیږم په اوبو که په اور سوزم    د سرو شونډو په آتش و په آب خوښ یم
چه د یار د خط و خال نښې په کښې وي    زوړند سر په مطالع د کتاب خوښ یم
تر دا پوچه گفتگو چه ئې زه اورم    په نغمه په ترانه د رباب خوښ یم
د ریا تر ناقبوله عبادته    د ساقي په میو مست و خراب خوښ یم
چه نه علم نه تسبیح نه تلاوت وي    له دې هسي بیدارۍ زه په خواب خوښ یم
د طوبي د وني سوري مي خوښ نه دي    ستا د مخ په لنبو سوي کباب خوښ یم

خاموشي که هر څو لويه مرتبه ده    زه له يار سره په سوال و جواب خوښ يم
د يار ډيري غمخوارئ يم عاجز کړي    رحمان ځکه په خوردن د شراب خوښ يم

صبح و شام مي لاس نيولي دي دعا کړم    خواست له خدايه ستا د مهر و د دفا کړم
هيڅ دروغ رښتيا مي نه زده که باور کړې    ستا دپاره هم دروغ و هم رښتيا کړم
واړه نه يې خندول که ژړول کړې    زه پخپله نه خندا کړم نه ژړا کړم
که ته نه يې باري وايه راته څوك دي    زه دا هسي ليوني و مجنون چا کړم
خوب خندا دبيلتانه په زمکه نشته    څه آرام به په دا دشت کربلا کړم
هره ورځ چه مي تيريږي ستا په غم کښي    زه په هره ورځ پوهيږم چه غزا کړم
يو ويښته مي د صورت کوږ شوي نه دي    هسي رنګ دي پټ پنهم په زړه ادا کړم
زړه که يو وي ما خو تا له دي درکړي    مګر نورو لره نور زړونه پيدا کړم
چه مي واغوست سر و پاي د عاشقۍ    زه رحمان دې سروپا بې سروپا کړم

دا ستا درد به په هزار درمان ور نه کړم    دانسته به دغه سود په زيان ور نه کړم
که څوك را کاندي دنيا و عقبئ دواړه    عاشقي به دي په اين و آن ور نه کړم
که مي چري لاس د ستا په وسه بر شي    دا نعمت به د جنت په خوان ور نه کړم
څو مي تيغ په پهلو نه دي لګيدلي    ستا پهلو به و رقيب آسان ور نه کړم
څو و نه وينمه ستا سترګي که خداي کا    عزرائيل لره به همره ځان ور نه کړم
معشوقه د عاشقانو دين ايمان دي    زه به چا لره خپل دين ايمان ور نه کړم
ستا تر زلفو پوري نوري زلفي څه دي    په خاشاك به د چمن ريحان ور نه کړم
په رحمان د ستا د لبو مي حرام دي    څو د خپلو وينو جام تاوان ور نه کړم

دا يو څه رنګه ژوندون دي نه پوهيږم    خواب و خيال دي که افسون دي نه پوهيږم
جام د ميو چه د ځان په وينو مومم    ترو زلال که جګر خون دي نه پوهيږم
د پتنګ او د بلبل تر ميان حيران يم    مخ دي اور دي که ګلګون دي نه پوهيږم
په شانه سره دي تار د زلفو بيل شه    که غوڅ شوي مي نارون دي نه پوهيږم
عشق به هسي رنګ مقام باندي قائم کړم    چه وصال دي که بيلتون دي نه پوهيږم
د خپل زړه و علامت وته حيران يم    چه موسئ دي که قارون دي نه پوهيږم
د رحمان چهره ئې زيړه تر زعفران کړه    خداي زده عشق دي که طاعون دي نه پوهيږم

بیا دي نوي شراب څښلي دي پوهیږم    په رخسار دي گل کرلي دي پوهیږم
که هزار ځله لاس سره کړې په نکریزو    تا ځما په وینو وللي دي پوهیږم
معرکه ځما د مراد نه ده نور څه ده    رقیبان چه تا بللي دي پوهیږم
څه حاجت دي چه دي خط په ملا لولم    چه ځما په باب دي کښلي دي پوهیږم
ته خپل جور و جفا څه وایې و ما ته    ما همه واړه لیدلي دي پوهیږم
چه رقیب او تا غوړونه و بله وروړه    ما هغه ساعت ژړلي دي پوهیږم
رقیبان ځکه تیري په رحمان کاندي    چه تا خوا پوري نیولي دي پوهیږم

په لیمه کښې مې مدام    عکس گرزي د گلفام
توري سترگې مې گلگون شوې    په آرزو د گل اندام
بې د سترگو له خونابه    نه باده لرم نه جام
په طلب د دلارام کښې    ما و نه لیده آرام
زنخدان ئې خداي کوهي کړ    وښوئیږم په هرگام
که ئې خال د مخ غلام دي    زه غلام یم د غلام
که په عشق کښې ناکام ډیر وي    دا ناکام دي ځما کام
خوښ یم زه په عاشقۍ کښې    که نیك نام یم که بد نام
په یارۍ کښې مې قبول دي    ملامت د خاص و عام
د دعا په عوض غواړم    د خپل یار د خولې دشنام
تر ښکنځلو به ئې ځار کړم    دغه خپل دعا سلام
تلخ گفتار ئې راته خوښ دي    تر کشمش و تر بادام
هم هغه مې مسیحا دي    چه ئې را کاندي سلام
مخ د یار ماه تمام دي    رحمان ولیده تمام

څو په صبر په جفا د یار کوم    څو به موم د نمر و مخ ته گرزوم
عاشقي او صبوري سره دروغ دي    زه دا لافي په دروغ څه رنگ وهم
ته و ما ته نصیحت مه کړه ناصحه    زه دا خپل تخم خپل ځان لره کرم
ما خو زده چه مینه اور ده خداي مین کړم    دانسته خپسر وا ورته اچوم
سررشته مي خداي د یار په لاس کښي ورکړم    په هر لور چه مي را کاږي پسي ځم

د آشنا د ميني لاس څما گريوان دي　　زه په دا كار كښي هيڅ عذر نلرم
عاشقانو باندي حق د معشوقو دي　　حق به ولي په باطله بدلوم
ما چه فرض په خپل ځان كړه د يار مينه　　ترو له فرضو غاړه څه رنگ غړوم
دا څه ژوند دي چه يار نه وينم په سترگو　　زه رحمان په جهان سترگي غړوم

چه له مرگه بې پروا يې په هر دم　　دغه هسي غم دي هير دي په كوم غم
نور همه واړه غمونه به دي هير شي　　كه يو ځل در باندي راشي دا ماتم
چه زخمي ئې سبا نه مومې په بيعه　　مفت مونده شي نن ساعت هغه مرهم
د مرهمو تياري در لره بويه　　چه لا نه يې د اجل په تيغ كړم
چه د تن له سرايه درومې توښه واخله　　تر دا سراي په هورته سراي نشته محكم
د دې لاري تله څه هسي آسان نه دي　　مشكلات دي په هر دم په هر قدم
كه دي ويره شي له ظلمه له ستمه　　ته هم مه كړه په هيچا باندي ستم
كه اميد لرې له رحمه له كرمه　　ستا هم بويه په هر چا باندي كرم
له هر چا سره چه كړې هغه نه مومې　　د هيڅ تخم ميوه نه درومي برهم
اجر واړه د عمل په اندازه وي　　دغه دواړه سره يو دي هم درهم
اوس د ستا رضا نيكي كړې كه بدي كړې　　نيك و بد دي دواړه كښوي شي په قلم
خداي د رزق په زيرمه مه هيروه كلك شه　　تر سړي د سړي رزق دي مقدم
كه گنې چه په حرص سره څه زيات شي　　زيات به نه شي د يوې ستني تر سپم
كه هزار رنگه تالاش و تردد كړې　　د قسمت شوي به نه كړې زيات و كم
ډير هوا و حرص مه كوه خداي ياد كړه　　دي كافي دي د عرب و د عجم
په تا فرض عبادت د خپل ښتن دي　　نه لښكري خزانې نې ملک و حشم
ټوك روټۍ يوه شړۍ در لره بس ده　　نور همه واړه اسراف دي مسلم
له خوراكه غرض قوت لا يموت دي　　نه چه غوښې غوړي وريجي يا غنم
له پوشاكه غرض خپسر پټول دي　　نه اطلس و سقلات تاج و علم
كه حرص در باندي زور شي مرگ ور ياد كړه　　دا علاج دي دغه رنځ لرم محكم
د لحد د تاريكۍ علاج به څه كړې　　چه ته دلته كښې ويريږې په تورتم
غفلت هيڅ مناسب نه دي د سپين ږيريو　　خوب روانه دي په وقت د صبحدم
مار چه سوړي لره ورشي گوره سم شي　　ته د گور په غاړه راغلې نه شوې سم

خم قامت د دنیا کار کړې عمر واړه او په دوه رکعته نفلو نه شوې خم
ځان په خوا تر هغه وژاړه که مرد یې چه په تا باندي ژړا کا نور عالم
نور عالم چه په تا ژاړي انصاف وکړه بې انصافه ته په څه یې خوښ خورم
که زه نه وایم ته خود سترګي روښې کړه کور دي خور شه ته چارپا یې که آدم
اې رحمانه لکه ته چه په خداي ګرم یې بل به نه وي په جهان کښي هسي ګرم

که په سر د هغه یار له لاسه سنګ خورم خداي دي نه کا چه به بله خوا ته څنګ خورم
عاشقي او ننګ و نام دي سره لري څو به عمر واړه غم د نام و ننګ خورم
خداي و ما وته شیرین کړه تر شکرو که د یار له لاسه غشي د خدنګ خورم
د آشنا د بیلتانه په کار و بار کښي همیشه په تندي توره د فرنګ خورم
نوکري د معشوقو کوم په عشق کښي مهینه د بهلول نه د اورنګ خورم
شین لوګي مي په سر چتر دونهه تخت دي ګرد غبار د خپل دولت لکه ملنګ خورم
هم په دا چه له خودئ شمه بې خوري د هجران په غم کښي لپي لپي بنګ خورم
لکه څوك چه نعمتونه د دنیا خوري زه د یار د کوڅې خاوري په دا رنګ خورم
واړه زهر شي څما تر ستوني درومي بې له یاره که همه لا چي لونګ خورم
زه رحمان به څو ژوندی په دنیا پایم چه په بلو لنبو څرخ لکه پتنګ خورم

# ن

هسي تيز درومي دوران　　گويا برق دي درخشان
د آسيا په څير گردش کا　　په زمين باندي آسمان
ککرۍ دي د سړيو　　چه ووړيږي تر دا ميان
پيدا کيږي فنا کيږي　　نه ئې حد شته نه پايان
نه ئې حد و نه پايان شته　　نه ئې سر شته په سامان
ځني ډول وهي ښادي کا　　ځني ويرکا د خپل ځان
ځني شمع غوندي ژاړي　　ځني گل غوندي خندان
که يې گورې يو گلزار دي　　که ئې گورې يو بيابان
يوه هسي تماشا ده　　چه ئې هيڅ نشته بيان
کيفيت ئې مونده نه شي　　په دليل و په برهان
چه ئې کومه خوا رفتن دي　　يا ئې چرته دي مکان
خداي خبر دي په دا علم　　هيڅ خبر نه دي رحمان

ډير ياران وو د گل خان و جمال خان　　پکار نه شه يو په وقت د زارستان
د همه واړو يارنو مخ دي تور شي　　که به څوك و بله ياري کا په دا شان
چه يو يار په سوري پروت وي بل په اور کښي　　و هغو ته به څوك څه وائي ياران
هيڅ تعريف مي په دا ژبه وايه نه شي　　صد رحمت شه په يارۍ د گل خان
تر دا پورته د يارۍ شرطونه څه وي　　چه په اور کښي دواړه وسوزي يکسان
چه له آله له اولاده سره وسول　　خداي دي نه کا څوك دا هسي مظلومان
چه په اور کښي يو د بل دپاره سوزي　　ما ليدلي نه وو هسي مخلصان
څه رنگ شوخ و هغه اور و هغه خلق　　چه ئې مړ نه کړ د اوښو په باران
الغياث دي الغياث دي الغياث دي　　چه انسان کا هسي ظلم په انسان
د نمرود چاري مي وليدې په سترگو　　چه ئې اچول و اور ته نبيان
هم دې زمکي هم آسمان ته تعجب کړم　　چه نه زمکه په نارو شوه نه آسمان
هم دې لويو لويو غرونو ته حيران يم　　چه ونه لوښته له ويخه سر غلطان
له دې خپله سپيه نفسه مي زړه بد شه　　چه اوبه څکي يا خواړه خوري په جهان
عالم وايي چه قيامت به په جمعه وي　　وليد ما په يکشنبه په دا دوران

هزار حیف دي چه دا هسي رنگه چاري    واقع کیږي د دنیا په سود و زیان
په عیسیٰ و په دجال کښي گناه نشته    دا مکرونه دي د نفس و د شیطان
عزیزان ئې څپله ووژل پخپله    دا همه واړه تقدیر دي د سجان
هسي نه چه دا ئې وکړه نور به نه کړي    چه ئې زړه شي هغه کاندي بادشاهان
شاه عالم اعظم وگوره چه ئې سخا کړ    په خونونو واړه ملك د هندوستان
و دارا و اورنگ زیب وته حیران شم    چه ئې څه چاري واقع شولې تر میان
د حسن حسین غزا دي څوك په زړه کا    چه همه واړه په تیغ شو شهیدان
د دوي غوښي اوښو وینو رغړولې    بې حسابه هسي خلق شه طوفان
هر چه اهل د دنیا دي حال ئې دا دي    که سړی دي که پیری دي که حیوان
آدم زاد په زمکه یو بل سره وژني    په دریاب کښي وبله غوښي خوري ماهیان
لکه غوښي چه ماهیان خوري په دریاب کښي    په هوا کښي هم دغه کاندي مرغان
خزنده و پرنده دي د دې دهر    همه واړه یو تر بل مشت و گریبان
مرداري د دې دنیا خو هم دغه ده    ځکه بیرته ځني گرزي درویشان
مکاري د زمانې څه همره نه ده    چه رحمان ئې چا ته وکاندي بیان

دنیا دار د دنیا کار کا زه د دین    خوانین ځما په ملك دي خوشه چین
هیڅ کم نه دي تر سپین مخ د دلبرانو    نلکه ښه دي ځما شعر نمکین
مراد له تورو سپینو واړه دلبري ده    موقوف نه دي دغه کار په تور و سپین
مرتبه د سلیمان چه چا له ورشي    هیڅ پوره نیمگړي نه دي پر نگین
چه رنگین رنگین مضمون پرې ښکلي نه وي    څه پکار دي د بیاض ورق رنگین
خوند په خوله دي نه په څکه نه په خواړه دي    آب و خور که د چا تلخ وي که شیرین
غرض خوب دي که په خس وي که په خاوره    څه حاجت دي په بستر و په بالین
مصریِ توره هم په بد غلاف کښي زنگ شي    خداي څوك مه کړه د بدانو همنشین
څه عجب که په ورځ مهر په شپه ماه شي    د رحمان آشنا چنان دي هم چنین

چرته د یار شونډي چرته غم د دل و جان    چرته کتي لال و چرته لعل د بدخشان
پاك ومنزه دي عشق د نفس له خاصیه    چرته چاه د گیډي چرته چاه د زنخدان
لږ تفاوت نه دي د رندیِ د زاهدیِ    چرته زلمي جونه چرته کونډي یتیمان

واړه بې وقوف دي چه څوك دين په دنيا پلوري چرته پنځه ورځې چرته عمر جاودان
ځار شه د هوا و حرص خيال تر قناعت چرته ملك د مصر چرته ده د غلامان
نه شي د خانانو د ملنگو سره كلي چرته عزيز خان چرته ملنگ عبدالرحمن

كه پښخوا تر آشنايۍ وي بيلتون ما به نه وُ له چا كړي پيوستون
چه مې يار په سترگو وليد ما گمان كړ چه هم دا ساعت مې بيا مودنده ژوندون
په نيمگړي داد خبر د فلك نه وم چه به بيا شي په ستنه را څخه ستون
نن ساعت چه له دې حاله خبردار شوم سكه تر نن ورځې بهتره وه پرون
هر زحمت چه په ما راشي شكرانه كړم عاشقۍ تر هسې حده كړم زبون
اوس كه لاس زه و بله مړم هيڅ سود نه كا هغه چاره چه له لاسه شوه بيرون
لكه نمر په څلورم آسمان ځليږي محبت ئې له حجابه كړم بيرون
چا چه نښه له ښه مخه را كوله اوس دي سور په نيلي گرزي د گردون
په دا هسې حال كښې څه رنگ صبوري شي چه دښمن دي كامراني كا ته محزون
كه په صبر سره تور كاڼي لعل كيږي لعل ئې مه كړه په دا هسې جگر خون
د دنيا هوس په ما باندي حرام شه د هوسۍ هسې كړم شپه په ميړتون
دريغه يو ځله هغه ځما په حال شوي چه و ما ته لولوي صبر و سكون
و رحمان ته ځان هغه گړۍ آسمان شي چه د ستا په غم كښې ناست وي سر نگون

كه ترې ولوښته شاهان و سلطانان هيڅ نيمگړي په چا نه شه دا جهان
كه هزار هزار فنا شي په يو دم كښې بيا پيدا شي په يو دم كښې هزاران
د رفتن د آمدن حساب ئې نشته لكه بحر چه بهيږي بې پايان
يو د بل په غم نه نرم وي نه گرم هم د هغه زده چه ور ئې شي په ځان
پيغمبر غوندي صاحب تر دنيا تير شه دا دنيا ويرانه نه شوه په هجران
چه دا هسې عالم لاندي شه تر خاورو د چا ياد دي ما و تا غوندي سگان
كه غلبيل كړم د تمامي دنيا خاوري بيا به نه مومم دارا و شاه جهان
بوي د نام و نشان ئې پاتي نه شه چه دعوی ئې كړه د نام و د نشان
كه دروغ وايم ته ورشه نظر وكړه د خپل پلار و د نيكه په گورستان
چه ئې ته په دواړو سترگو ښكلولې گوره څه شوې هغه خولې هغه لبان

چه مدام ئې په قربان قربان بللې اوس دي غبر در باندي وکا چه قربان
د رحمان و سوزان شعر ته حیران یم چه ئې اور بل شوي نه دي په دیوان

فراموش مي کړ د ستا په مینه ځان ځان لا څه دي بلکه عمر جاودان
لکه زه چه ستا د در په خاورو خوښ یم همره عیش و طرب نه لري شاهان
لکه زه چه ستا د غم پنډونه اخلم همره پنډ اخیستي نه شي پهلوان
هسي بې سر و سامان یم ستا په عشق کښي چه آکاه نه یم په سر و په سامان
هسي بې شرابو مست یم ستا په مینه چه خبر نه یم له زمکي له آسمان
دا به څه رنگ شي چه ته د کال وعده کړې په ما نه تیریږي بې تا یو زمان
تمامي عمر د ستا په طلب ورك یم لټوم دي په هر ښهر په بیابان
که له دره ئې شړې که ئې پریږدې ته ډیر مین دي ستا په مخ عبدالرحمٰن

ته چه هسي گاه یې ترش گاه یې خندان له عاشق سره کینه کړې که احسان
له احواله دي چا نه زده چه به څکړې کله جور کله لطف کړې عیان
رنځ راحت د عاشقانو واړه ته یې دا دروغ دي چه وصال دي یا هجران
هغه شونډي چه خوري دي تر شکرو له ښکنځلو ئې عار نه کا عاشقان
رجوعات د ښایسته و چا ته نه وي هر گز نه وي سرکوزي د سروشان
دغه هسي رنگ ښایست لکه چه ستا دي نشته دا رنگه ښایست د هیڅ انسان
کست تر هسي حده ولي کړې گل رخه چه له ډیره نازه وژنې عاشقان
و هر چا وته چه ستا قوت رسیږي هلته نه رسي قوت د درست جهان
ستا له جوره زهره نه لري چه آه کا که کشور د عاشقانو شي ویران
خوار حیران لکه عاشق دي ستا له دره خداي دي هیڅوک هسي نه کا خوار حیران
لکه ډیر وایي د وصل راحتونه دغه هسي د فرقت دي سخت زندان
د رخسار نښي دي واړه د خورشید دي چه ئې درست جهان له نوره دي روښان
له هوسه دي هر گل کره خندا شوه چه ئې ولید ستا د حسن گلستان
کله وي چه نصیحت کاندي عاشق ته که له حسنه دي آگاه شي زاهدان
رنگ روي دي لري رنگ د سرو گلونو توري څڼې دي ښاخونه د ریحان
سیاهي د نوي خط دي هسي زیب کا لکه ښکلي واړه توري د قرآن
و کوهي ته چه لغزش کاکل خطر وي کل خیرت دي کوهي ستا د زنخدان

که د درو تجلي ده ډېره ډېره در تاریك شي چه ظاهر شي ستا دندان
ته سلطان د ښایسته و یې دلبره دا نور واړه ښایسته دي نوکران
که دا نور ښایسته ستوري ویل کیږي ته خو رشید غوندي صورت لرې روښان
له هر چا چه اوریده شي دغه وایي چه ښایست دي زړه نه لري نقصان
در و لعل شو ویل د رحمان ځکه چه د ستا د لعلو شونډو شه گویان

څو به شمیرم زه غمونه د هجران همره ډېر دي لکه ریگ د بیابان
د سړي د دښمنۍ طاقت مي نه وه خداي را پیښه دښمني کړه د اسمان
لکه څوك چه د اوښ بار په میږي کیږدي هسي زه یم په خپل غم پوري ناتوان
لکه اور د بیلتانه چه په ما اوري چا لیدلي کښه اور دي په دا شان
د یار غم به مي هغه سړي په شمار کړي چه شمیرلي ئې ویښته وي د خپل ځان
که څوك وایي حال دي څه دي په هجران کښې په خاطر دي تصور کړي دوزخیان
نا قرار روح مي د یار په هوا والوت تش صورت مي په ځاي پاتي شه حیران
د یار دم مي زړه په غټو سترگو یووړ لکه بت چه په دیوال کښې شي حیران
ما وې زړه د مومن عرش دي خبر نه وم چه به عشق ځما دا عرش کاندي ویران
عاشقۍ ئې تر هغه حده بې هوښ کړم چه نه هوښ لرم نه سر و نه سامان
لور په لور ئې د تهمت په غونډو ویشت شم ملامت را باندي وایي درست جهان
چه دا حال ورباندي نه وي ورغلي په ویل به څه گروهیږي د رحمان

ورکه عاشقي شه هم ئې نوم هم ئې نشان زه ئې هسي خوار کړم لکه خاك د بیابان
زه د عشق په کار کښې تیر تر سره هم له مال یم دریغه که په سر مي دا مشکل کا خداي آسان
کښیوتم د عشق په آدم خورو گردابونه نه په وړاندي تلي شم نه په بیرته گریزان
رنځ د عاشقۍ چه زه ظاهر کړم و طبیب ته هیڅ ویلي نه شي طبیبان و حکیمان
راشه عاشقي مه کړه رحمانه او که نه وي تل په اور به ناست ئې که پادشاه ئې د جهان

خـــان ســـلـــطـــان د دې جـــهـــان آخـــر درومـــي خـــوار حـــیـــران
د قـــضـــا پـــه ځـــیـــل تـــړلـــي پـــه مـــشـــال د بـــنـــدیـــوان
شـــیـــریـــن ځـــان ور څـــخـــه درومـــي نـــه ئـــې زور شـــي نـــه ئـــې تـــوان
کـــه ښـــنـــدي مـــال و مـــلـــك واړه هـــیـــڅ رنـــگ نـــه مـــومـــي امـــان

نه ئې مل نه ئې حامي وي درد ئې ورشي په خپل ځان
در مانده وته ولاړ وي وزیران و وکیلان
هیڅ داروکولي نشي کوزکوزګوري حکیمان
بادشاهي ئې پاتې کیږي زړه ئې چوي په ډیر ارمان
چه ئې روح له تنه بیل شي نور پرې ژاړی فرزندان
یو ساعت وربانه دي ژاړي آخر صبر کړي خواران
بیا ئې غسل له واخلي په تخته باندي عریان
په جامو ئې خوشحالیږي مرده شو او غاسلان
چه له قبره ئې بازګشت شي مال ئې یوسي وارثان
په مسند ئې دعوي کاندي هم دوستان هم دښمنان
سهیلي ئې تالا کاندي هغه خپل مصاحیان
نام نشان ئې هسي ورك شي لکه عین بې نشان
نه ئې نقش پاتې کیږي نه ئې اسم په جهان
دا دنیا آب روان ده نه شي نقش په آب روان
که هزار رنګ آبادي کا نهایت خانه ویران
لکه باد هسي به تیر شي هغه دور هغه دوران
دا بیان دور و دراز دي کوته قطع کړ رحمان

# و

که نظر کا څوک په کار د درویشانو خود به ویني وقار د درویشانو
په دغه لاري به ورشي خداي رسول ته که څوک یون کاندي په لار د درویشانو
هر گفتار به ئې د خداي په در قبول وي چه قبول ئې کړ گفتار د درویشانو
هسي گرم بازار بل په جهان نشته لکه گرم دي بازار د درویشانو
په یوه قدم تر عرشه پوري رسي ما لیدلي دي رفتار د درویشانو
همره خلق ئې زیارت کا پس له مرگه چه بازار وي په مزار د درویشانو
پادشاهان د دې دنیا واړه پراته دي لکه خاوري په دربار د درویشانو
هر بهار لره خزان په جهان شته دي خزان نه لري بهار د درویشانو
د جنت د باغ گلونه به ئې هیر شي که څوك ویني گلزار د درویشانو
چه دنیا ئې کړه د خداي د پاره ترکه صد رحمت شه په روزگار د درویشانو
د قارون و حال ته گوره حال ئې څه شه راشه مه کوه انکار د درویشانو
په هر چا چه د عضب لنده کا ښځه خطا نه درومی گذار د درویشانو
درست دیوان د رحمان ځار تر دا غزل شه چه بیان ئې کړ کردار د درویشانو

اوښي نه لري حساب ځما د سترگو بې حسابه شه سیلاب ځما د سترگو
سیاهي مي همه واړه سفیدي شوه هسي پریولی شي کتاب ځما د سترگو
که مي سره دي که مي سپین دي که مي تور دي اوښو یووړ هر اسباب ځما د سترگو
چه رخسار د هغه یار را څخه پټ شي حبطه شي آب و تاب ځما د سترگو
چه گداز ئې په دا گرمو اوښو نه شه مگر گاڼي دي حباب ځما د سترگو
چه مي نقش په زړه سرې شونډې د یار شوې کان د لعلو شه گرداب ځما د سترگو
که نور خلق د آفتاب په روڼا زیست کا مخ د ترکو دي آفتاب ځما د سترگو
ما ئې خیال لره ابلق د سترگو زین کړ قدم نه ږدي په رکاب څما د سترگو
لکه تښتي وحشیان له مردمانو هسي وتښتیده خواب ځما د سترگو
ما رحمان چه سترگي روڼي په خپل یار کړې اوس محال دي اجتناب ځما د سترگو

هیڅوك مه شه گرفتار د تورو زلفو مه اسیر شه په کفار د تور زلفو
هم په شان د تورو زلفو به پریشان وي هر چه کاندی انتظار د تورو زلفو
د محشر عالم به کله په قرار وي څوك به څه غواړي قرار د تورو زلفو
څو ئې صبح د قیامت دمیده نه شي ورځ به نه شي شب تار د تورو زلفو
مگر شمع د سپین مخ شي باندی بله گنې نشته نور انوار د تورو زلفو
تار په تار کا د عاشق د خاطر خونه چه حلقه شي تار په تار د تورو زلفو
چه تمام جهان ئې نښتي دي په دم کښې څوك به څه کاندي انکار د تورو زلفو
زه له کوم یوه کمنده سر وکاږم کمندونه دي هزار د تورو زلفو
په تندی د محتسب کا درّه ما ته چه پرې راشی درّه دار د تورو زلفو
همره زړونه ئې پیلي په هر تار دي چه تسبیح کړ خدای زنار د تورو زلفو
ملك د هند و د حبش ئې واړه زیر کړ چه پیدا شه شهریار د تورو زلفو
ښامارانو غوندي گرزي په گنجونو نشي هیڅ په زړه کښې ډار د تورو زلفو
که به بل مار چیچل په لاسو یا په پښو کا په زړه خوله لگوي مار د تورو زلفو
د رحمان تر قلم مښك و عنبر اوري چه آغاز ئې کړ اشعار د تورو زلفو

که هر څو په صحرا سر شوم هم په کلیو بیا مي نه موند هیڅ خبر د هغه تللیو
خدای زده کومه خوا ته لاړل حال ئې څه شه خبر نه یم د گړنگ له پریوتلیو
له دې غمه مي زړه چوي که څوك خبر وي لږ په ما هم خبر وکړئ خدای ساتلیو
پس له دې به چرته درومي ځای مو کوم دي راته وائي د دنیا په سرای راغلیو
گوندی ستاسو په مخ زه پسندیده شم لاس د خدای ورته ونسی پسندلیو
خبر نه یم چه په باب مي کښلی څه دي زه رحمان په اندیشه یم له دې ښکلیو

تور لیمه مي د فراق په ژړا سپین شو دوباره د زړه په وینو کښې رنگین شو
ما وې زه به لا دیدن کړم د یارانو خبر نه وم چه یاران په کوچ تعیین شو
چا پتنگ غوندي ځان واچاوه و اور ته څوك ژوندي لکه بلبل په آتشین شو
د مرده ؤ ته د مرگ خوارۍ شوې پیښې او ژوندی په زندگۍ کښې اندوهگین شو
د قضا سپاهیانو هسي لاس په تاخت کړ چه پایمال هزار خسرو هزار شیرین شو
چه قدم ئې په آسمان ایښود له نازه هغه هسی ناز پرور زیر زمین شو

چه مدام ئې د سنجاب د پاسه خوب کړ اوس په زمکه بې بستر و بې بالین شو
د رحمان خاطر به ولې پریشان نه وي چه پریشان ور څخه جمع همنشین شو

تا چه رنگ و میو ورکړ د لبانو اور دې پوري کړ په کور د مې خورانو
چه دې جوړه کړه لنده د کږو وروځو خو به ښکار کړې په حرم د غزالانو
چه دې اسم د زنځیر په زلفو کښیښود معطر دې کړ دماغ د دیوانگانو
په رخسار چه دې د خط غبار څرگند شه سر بلنده شوه فرقه د خاکسارانو
کاږه غشي واړه بیرته ځي له نښي زه آزار کړم ستا گږو گږو مژگانو
چه ځما د یار تر مینځه جدایي کا کاڼي پریوتي په خونه د بدانو
که مې چرې خواست د خداې په در قبلیږي سوال به زه د عمر کړم د مهوشانو
سور پیزوان دې په سرو شونډو هسې زیب کا لکه جیم په قلم ښکلي کاتبانو
د سرو ټیك دې شهزاده په جبین پروت دې شینکی خال دې محاصل په بندیوانو
دواړه لیچې دې وکښلی مصرۍ توري در پوهیږم سر به پریکړي د خوارانو
ستا له غمه په ځان زړه د رحمان سوزي لکه شمع په زیارت د شهیدانو

چه کوټلې دې په تیغ ستا د چشمانو سر حلقه دې د جمله ؤ شهیدانو
ستا وصال د سر پریکړیو دې دلبره ژوندی نه مومي جنت بې مردگانو
د پیری سوری عاقل لره ضرر دې دا مقام دې د سر تور د دیوانگانو
په سرپوښ محل کښې نور د آفتاب نه وي دا دولت دې نازل شوي په ډاگیانو
هم په دا ځما له سترگو وینې څاځي چه دې نقش په کښې رنگ دې د لبانو
مشکین خال دې په سرو لبو هسې زیب کا لکه مهر په مخزن د در مرجانو
ما سوی له یاره هر چه دې رحمانه واړه کفر دې په دین د عاشقانو

هر ساعت ځما د غوږ په تاوولو د فلك لاسونه شنه شو تر څنگلو
همره غم د بیلتانه را باندې راغي چه حساب ئې نه په خوله شي نه په کښلو
هغه سترگې چه نرگس و هم بادام دې تیرې توري دې ځما په قتلولو
هغه شونډې چه شیریني دې تر قندو ما هیڅ فیض ځنې بیا نه موند بې ښکنځلو
دا کاږه کاږه باڼه او کږې وروځې نور څه نه کا بې کږو کږو وهلو
په شپه نوکی د عاشق په وینو سرې کا سبا پوري کا نکریزي په منگلو

دا ځما د قاتل لاس دي نه پوهیږم    که تر باغ وتلي ښاخ دي د سرو گلو
دریغه مرگ ئې په دنیا کښې نیمه خوا شوي    ښایسته عنچې ئې پرې یستې د گلو
هسې بند شه په کمند د تورو زلفو    چه حیران یم د رحمان په خلاصولو

# ۵

د دلبرو په درگاه    نه حرمت لرم نه جاه
غوځوي مي د زړه ولي    د چشمانو په نگاه
همره قدر مي هم نشته    لکه قدر د گیاه
هیڅ خبر له ځانه نه یم    چه ئې څه لرم گناه
یو نظر را باندې نه کا    از برای عندالله
که له غمه ئې سر پټ کړم    بل سر نه لرم پناه
د رحمان په خیر دې نه شي    حال احوال د چا تباه

چه ئې ولیده ستا حسن بې حسابه    له دې قصده تاو پیدا شه له آفتابه
په آرزو دې د نرکس سترگي څلور شوې    غنچه سره د زړه په وینو شوه غرقابه
ستا په غم مي سترغلي سرې سرې ناغې شوې    یا خیمې دې سیاه پوشی سره طنابه
که دې زلفي په مخ پیچ و تاب شوې ښائي    وینښته څه طاقت لري د اور له تابه
زه چه خداي د ستا د غم سره آشنا کړم    خوشحالي مي نور نایابه شوه نایابه
سترغلي مي د فراق په ژړا سره شول    د سبزې اثر ئې پاڅیده له آبه
ماه خورشید دې په ښایست پوري شرمېږي    ځکه مخ فنا کوي تر کوه قابه
زه دې پیژنم په اصل کښې خاکي یې    ځان به څو څنډې په گوته له ترابه
څو دې خیال د آشنا گرزي په لیمه کښې    خبر زده کړه ته د اوښو له سیلابه
د رحمان به بخت هاله له خوبه ویښ شي    که ته سترگي ورته پورته کړې له خوابه

ته شها یې شکر لبه    گل رخساره سیم غبغبه
په نادرو کښې نادره    په عجبو کښې عجبه
په جمله ؤ معشوقو کښې    بوالعجب یې منتخبه
بې زیوره ښایسته یې    بې ترتیبه مرتبه
دغه داد د الهی دي    بې تالاشه بې طلبه
آب حیات چه حیات موند بیا    ستا د شونډو له سببه
مخ دې سپین تر سپین سبا دي    زلفي توري تر تور شبه
ستا د مخ عرق دانه ؤ    زینت رانیوله کوکبه

د ښايست مخي دي نښته تر مشرقه تر مغربه
د وصال مونده دي گران دي مگر فضل شي له ربه
چه د رب فضل پرې وشي هغه خلاص شي له غضبه
دا دولت د خداي په داد دي مونده نه شي له نسبه
عشق څه هسي علم نه دي چه حاصل شي له مکتبه
مکتب حال د مذهب وايي عشق سوی دي له مذهبه
د عاشق مذهب هم دا دي چه دم نه وي بې مطلبه
ستا د حسن په صفت کښي رحمان گنگ شه له ادبه

په هر زړه چه د يار مينه شي غالبه بله مينه ئې هيڅ نه وي مناسبه
نوری واړه مرتبې به روته هيڅ شي که خبر شي څوك له هسو مراتبه
لياقت ئې هر وګړي څخه نشته عاشقي يوه پايه ده عجائبه
د طلب له کوتاهۍ نه ويره وکړه که هر څو دي لار کوتاهه ده طالبه
عشق څرګند خزانه ده خوار هغه شه چه څرګنده خزانه شوه ترې غائبه
غوره خط د مهرويانو تر خط نشته که هزار رنګ کتابونه کړې کاتبه
هيڅ ئې مه پوښته له فرضو له واجبو په هغو چه عاشقي کړه خداي واجبه
عاشقان تر سرو و ماله يار ته تير دي خداي دي دا طايفه نه کاندي کاذبه
زه رحمان د خپل صاحب په رضا زيست کړم څه پکار دي دا بنده بې خپل صاحبه

ورځ دي تيره په شومي کړه شپه له خوابه خداي به کله يادوې خانه خرابه
په شتاب شتاب دي تله دي که پوهيږې غافل مه شه د دې عمر له شتابه
دلته دم و قدم دواړه په حساب دي پل غلط د لاري مه ږده بې حسابه
راستولي خداي حساب دي په کتاب کښي خبر زده کړه له حسابه له کتابه
ته و خپلو نيکو بد وته نظر کړه چه بدي دي څو تيري کړي له ثوابه
په هغه جهان به څنګه ځواب وکړې چه پدې جهان عاجز يې له ځوابه
عاقبت به تورو خاورو لره درومې ځان به څو څنډې په ګوتو له ترابه
د کاغذ په کښتۍ سيل به کړې تر کومه دا کښتۍ به دي مرګي کاندي غرقابه
چه آفتاب يوه نيزه شي بيا به څه کړې اوس چه سوري له ور تښتې له آفتابه
په آزار د چا راضي مه شه رحمانه که خلاصي په قيامت غواړې له عذابه

په ورځ ناست ئې بې مطلبه    په شپه خوب کړې بې ادبه
لاس دي وخاته له دواړو    هم له روزه هم له شبه
نه دلې شوې نه هروې شوې    تر مينځ ډوب شوې مذبذبه
عبادت دي په ريا شه    په مذهب کښې بد مذهبه
مدام بند يې په سبب کښې    بې خبر له مسببه
واړه تشې شلونبې شازې    خبر نه شوې له مطلبه
ته اوده وربانندي سور يې    آس دي يون کا بې جلبه
تن دي تش په وره وسه    آس دي داغ کړ بې منصبه
د راکب چه واك پردی شي    سود ئې څه وي له مرکبه
له ژونديو سره ناست يې    له مرده ؤ مرکبه
هلک لوي شوې په اوبو کښې    اوبه نه پيژنې کبه
لکه کانې يا کودري    په درياب کښې تشنه لبه
نا آگاه ځان آکاه بولې    دا خبره ده عجبه
مراد له زهده معرفت دي    نه تش ځان وژل اقربه
د رحمان شراب له عشقه    نه انگور نه له عنبه

تا چه په دا تورو سترگو وکاته و ما ته    زړه دي څما تور کړ له دې نوره مخلوقاته
ما خو چه ته وليدې هغه ساعت مي ووې    نوره به مي مينه د زړه نه شي له تا ماته
شيخ و زاهدان چه نصيحت وايي و ما ته    نه دي خبر شوی ستا د مخ له محسنا ته
څه شوه که زه انگشت نما شوم ستا په مينه    لا تر ما نه خوښ يې و قاضی ته هم ملا ته
مرم په دا چه ما له تا جار باسي هغه خلق    بيا دي په ديدن تر ما وړنبي در زغلي خوا ته
زه رحمان چه يار ووينم وايم خدانه خير کړې    گله ښاپيرۍ ده د بنی آدم له ذاته

که د عقل څه اثر لرې و سر ته    لاس په سر مه شه د هر گيدي و در ته
په نظر د هغو خاوري سره زر کيږي    هر چه نه لري نظر و سيم و زر ته
بې منته جام د زهرو څښلي ښه دي    نه هغه چه منت بار شي و کوثر ته
د يوسف له جاله زده کړه دغه پسه    وايه حال د زمانې و برادر ته
دې فلك و چا ته هيڅ بخښلي نه دي    چه ئې نه دي راپيرو دي څيني بيرته
د خروار دعوه ئې وکښه ممکنه    که رتۍ يا جو دانه به ئې وي درته

که له خدایه دي خلقو وته مخ شي	له فردوسه به دي مخ شي و سقر ته
همیشه به در په در گرزي رټلي	د استوګني ځاي به بیا مومي چرته
د دې سست بدن منت په رحمان باندي	چه له خپله دره تلي نه شي بل درته

چه نظر کړم د خوبانو و رخسار ته	آئینه غوندي حیران شم و دې کار ته
له دهشته ئې ریبار پوښتیدی نه شم	خداي زده څه به ئې ویلي وي ریبار ته
خلوتیان لکه برده په کښي خرڅیږي	غبږ ئې نه خیژي د حسن و بازار ته
ته چه ما پوښتې د یار له حقیقته	څوك د یار خبري کاندي و اغیار ته
درد و غم د عاشقۍ څه همره نه دي	چه ئې عقل د چا رسي و مقدار ته
زه و یار چه خپل غمونه سره شمار کړو	یار و ما ته حیرانیږي زه و یار ته
رحمان هسي وزگار چري دي له عشقه	چه غوږ ونیسي ناصح غوندي وزگار ته

ما د دهر غم وهلي دي په لته	د پیالې د صراحی له برکته
که اوبه دي د حیاتو په تور تم کښي	ساده رویو و ما راکړې بې ظلمته
هغه یار چه و ما جام د میو راکړ	د دښنو ویني مي وڅښې بې شدته
بې خودۍ ئې د دنیا له غمه خلاص کړم	لا مي بیا مونده بیرون له شش جهته
د دښمن په دښمنۍ می خندا کیږي	لکه شمع د مقراض له خصومته
بې خیري مي کل په خیر ده شمیرلې	د زمری په خوله کښي ناست یم فراغته
مړ بهتر دي تر هغه چه څوك بې پت وي	په یارۍ کښي دي خداي نه کا بې پته
داستۍ چه په اور سوزي مراد یې دا دي	زه په اور کښي سوې ښه یم نه بې پته
خداي هاله د سړي یاد شي چه درد مند شي	کمه نه ده دردمندي تر عبادته
زه رحمان په سل حلقو د زلفو بند یم	لا د پاسه سور پیزوان شه بله نته

ستا په مخ کښي چه حساب د جمال نشته	ځکه ما څخه د صبر مجال نشته
ته د سر و د مال ویره په ما مه کړه	ویره ما څخه د سر و د مال نشته
زه په دا سبب له ویري سره ریږدم	چه ستا ویره کښي ثواب دي وبال نشته
که وعده د یوې چاري یو ساعت کړې	د هغې چاري امید مي په کال نشته
د شهید و حال ته گوره حال ئې څه دي	بې تا هسي ځما حال دي بل حال نشته
روشنائي مي د چشمانو ستا دیدن دي	په دا کور کښي بل څراغ و مشال نشته

په جویبار ځما د سترګو سرو ته یې    په دا نهر باندی بل څه نهال نشته
مخ دي بې خط و بې خاله هسي زیب کا    چه ئې هیڅ حاجت په خط و په حال نشته
مخامخ که راته وګورې دلبره    په کاته کښې دي ثواب دي وبال نشته
د آفتاب په مخ کښې هره ورځ زوال دي    ستا د حسن په آفتاب کښې زوال نشته
ستا په یادو کښې رحمان هسي مشغول دي    چه په زړه کښې ئې هیڅ غم د وصال نشته

مخ ته دي نمر وایم زلفي تار تار نشته    سرو که ستا قد بولم د سرو یون رفتار نشته
هر څوك چه د ستا و آتشین رخسار ته ګل وایی    پوچ وایی د اور په مخ کښې وقر د ګلزار نشته
زلفي دي ناحقه خلق بولي په سنبل ضمه    ولي چه له مښکو سره هیڅ د ګیاه کار نشته
ما چه غښ په غوړ و ستا د در د سپیو واورید    هسي رنګ بلبله په چمن کښې په ګفتار نشته
ستا دیدن هغه کا چه ئې سر په تنه پاس نه وي    ولي چه د سر د ښښتن جور وته لار نشته
یار به د رقیب په لوري خدای نه کا رحمانه سم    ولي چه د سپیو فرشتو سره څه کار نشته

تا خو زده ځما د زړه له احتیاجه    نور می څه پوښتې چه څه غواړې محتاجه
د طالب د مطلوب راز به ما در وښود    که ته نه وې خبر دار له دې رواجه
یار که یار ته حال په خوله نه وایي څه شو    و حکیم ته پټ څرګند وي له مزاجه
که ځما له حاله ما پوښتې حال دا دي    چه بې تا مي ورځ تیاره ده شب داجه
آشنائي به ما په کوم قوت کوله    که خبر وي ستا د هجر له تاراجه
که په سولو کښې یو خواست د چا قبلیږی    خدای دي هیڅوك رنځور نه کا بې علاجه
په رحمان بلا پسې که زهریږي    ته مشغول اوسې له خپله تخت و تاجه

چه خبر شوم د ساقی د جام له راحه    لکه مړي ملاقي شوم له ارواحه
زه چه زلفي د یار ووینم په خوب کښې    په شپه مښك راباندي تر صباحه
سبا زیري د وصال په مهجور کاندی    د هیواد خبر موندي شي له سیاحه
که روا کا خون خوردن د عاشقانو    څوك وتی شي د خوبانو له صلاحه
هر ساقي چه جام د عشق لري په لاس کښې    دا پیاله ئې په مستانو ده مباحه
مخ که بې میني څوك ستایي ستایه نشي    د ممدوح له قدره چا زده بې مداحه
د دنیا ناوې په عقد کښې دین غواړي    ای رحمانه ځان ئې ژغوره له نکاحه

ولي تللي يې له ما مدامم په څه؟ ترهيدلی يې هر صبح و شام په څه؟
زه هر صبح و شام دعا کوم و تا ته ته و ما ته کوې دشنام په څه؟
هميشه لکه وحشي په وحشت گرزې يو ساعت را سره نه يې رام په څه؟
هميشه را څخه درومې په وړاندې لکه عمر بيرته ته بردې گام په څه؟
راته وايه زه به هم هغه کومه غمازانو ته بخښې انعام په څه؟
لږ پرهيز کړه له رقيبه خداي د پاره گڼوې سره حلال حرام په څه؟
رحمان ستا په مخ بې څنو هم مين دي بيهوده دي ورته کيښود دام په څه؟

ولي نه گورې و ما ته سم په څه؟ زياتوې د غمزده ؤ غم په څه؟
ستا په غم کښې چه ما ويني عالم ژاړي ژړوې را سره نور عالم په څه؟
په مطلب دې د سرو شونډو نه پوهيږم چه مې ويني د زړه څښې هر دم په څه؟
ستمگار چه ستم کا بهانه کاندې ته په ما باندې کوې ستم په څه؟
مه کړه خداي چه څوک بې ياره خوښ خورم وي زه به اوسم بې تا خوښ خورم په څه؟
و دې خپلو برندو سترگو ته دي وايه چه ورژني مې قلم قلم په څه؟
لږ ئې وپوښته چه حال دې د زړه څه دي د رحمان له سترگو څاڅي نم په څه؟
رحمان خود پخپله گرم يم چه مين شوم ولي نور عالم مې بولي گرم په څه؟

که څه وايم له هجرانه وايم څه؟ له دې درده بې درامنه وايم څه؟
توان د دم وهلو نه لرم و يار ته چه توان نه لرم بې توانه وايم څه؟
چه ئې ووينم له ځانه خبر نه يم چه خبر نه يم له ځانه وايم څه؟
د خپل زړه له حاله هيڅ را ويل نه شي له بې نامه بې نشانه وايم څه؟
د عشق راز چه هيچا نه دي بيان کړي ترو به زه له بې بيانه وايم څه؟
د خپل يار له غمه درست په وينو ډوب يم له دې هسي رنگ طوفانه وايم څه؟
زه چه پروت يم د هجران په تناره کښې د وصال له گلستانه وايم څه؟
سر و مال د سړي لوټ کړي زړه ئې يوسي له دې هسي دل ستانه وايم څه؟
زاغان بولي بلبلان شړي له باغه د دې دهر له باغبانه وايم څه؟
هر چه وايم تر همه واړو بهتر دي زه رحمان به له جانانه وايم څه؟

څه شوکه خاموش يم ستا د عشق له آه سرده ستا ځما له مينی خلقه واړه خبر ده
هيڅوك دي په خوله د عاشقۍ لافه و نه کا کله هم پټيږي وچي شونډي ګونه درده
اهل د دنيا واړه نامرد دي رنګ ئې ورك شه خداي دي ملامت د هيچا نه کا له مامرده
کله بې دردانو لره زړه د چا ور درومی زه به صدقه کړم سل بې درد تر اهل درده
بې د ستا د عشق د شهيدانو له خاکدانه کله زرغونيږي سره لاله له هره ګرده
يو خوشحال يوکم سل خټك نور په طبيعت کښي ځار شه د رحمان سره بني له يوه فرده

که ځما مينه په تا ده خطا نه ده که بې تا ده ناروا ده روا نه ده
څوك چه بې د ستا له مخه بل ته ګوري آئينه ئې نا صفا ده صفا نه ده
هر عاشق چه پخپل يار پسي ژړا کا دا ژړا واړه خندا ده ژړا نه ده
د دنيا په تماشا چه څوك نازيږي خو هم نن ئې تماشا ده سبا نه ده
که ته سل ځله له ما سره جفا کړې ستا جفا واړه وفا ده جفا نه ده
هغه تير شو چه مي مينه په غلا غلا کړه اوس په درست جهان رسوا ده په غلا نه ده
معشقوقه که د خپل سر په بها مومی و رحمان وته ويړيا ده بها نه ده

له اغيار سره خندا څه پکار نه ده له اغيار سره سودا څه پکار نه ده
سل ياریَ د يوه يار د پاره کيږي آشنائي د هر آشنا څه پکار نه ده
هر بلبل به دي ثنا کا که ته ګل شې په خپل ځان خپله ثنا څه پکار نه ده
عشق د بوي په څير په پټه خوله څرګندوی په دا چارو کښي غوغا څه پکار نه ده
د عشق درد واړه عاشق لره راحت دي د دې هسي رنځ دوا څه پکار نه ده
بد له بدو سره بويه نيك له نيکو د جفا په ځاي وفا څه پکار نه ده
عاشقي حرص و هوا دي سره لري د بيمار په ځان هوا څه پکار نه ده
عاشقي يو نادر کار دي په جهان کښي ولې بې خدايه سودا څه پکار نه ده
که ئې کړم هم ئې هيڅ نه ګټم سوګند دي وابستګي د دې دنيا څه پکار نه ده
د دنيا مينه بې کاره اوريدي شي چه مي وليده رښتايا څه پکار نه ده
که رحمان په جهان ډير پايم دلبره زندګي ځما بې تا څه پکار نه ده

ګوره بيا به څوك ادا کا په زړه غونډه چه دا هسي مسته درومي مخ بر بنډه
ته چه ګل د آشنائی له باغه غواړې خبر زده کړه د هجران له خارو خنډه

ما رستم د زمانې ولید په سترګو    چه د یار له جوره ژاړي لکه کونډه
طالبان که مرور دي هم پخلا دي    بې مطلوبه به د چا نه رسي دا هنډه
د عاشق د لاغرۍ سبب هم دا دي    چه فرقه د معشوقو شوه په زړه ټنډه
زه به حوري د جنت بې یاره څه کړم    خداي دي سرو د چا نه کاندي ارهنډه
سخت ساعت د بیلتانه به مي هیر نه شي    که را ډکه شي د تور لحد ګور هنډه
زه رحمان د هغه حسن ثنا خوان یم    چه جرګه د عاشقانو وي پرې پنډه

ستا په عشق کښي هسي خلاص یم له شعوره    چه یوه خبره نه لرم منظوره
طبیبان وایی چه صبر دي دارو دي    خداي څمونږ فرقه پیدا کړه نا صبوره
توري هر چري تړلي په دښمن شي    یاره ستا سترګي دوستان وژني په توره
معشوقې د زمانې شوې سره ټولي    د زړه خونه مي ئې ولوټله چوره
زه تنها په ضرور نه یم ستا له غمه    پیدا شوې عاشقي ده له ضروره
هري شپې لره ورځ شته ده په دنیا کښي    څما عمر جدایي کړ بې له نوره
مهرویان وفا له هیچا سره نه کا    دا خبره په عالم کښي ده مشهوره
له حیرته واړه ګوتي په غاښ نسي    په هجران کښی چه خبر شي له مهجوره
د رقیب له ندو سترګو دي څان ژغوري    هر عاشق چه بهره مند شي له حضوره
همره توان و توفیق نه ګنم په بخت کښي    چه تایب کا ما له فسق و فجوره
په نظر د مدعیانو تور کودی وي    که ئې کښینوم د کټ د پاسه حوره
د رحمان د سترګو نم به هاله وچ شي    که وچ شوي د چا نم وي له ناسوره

زه عار نه لرم په عشق کښي له پیغوره    بې پروا یم د ستۍ په څیر له اوره
ږدی په خوله د سمندر مهر د مومو    چه څوك ما منع کوي د عشق له شوره
بې هجرانه څما بله خواري نشته    ولي نشته تر دا بله خواري نوره
لکه ته چه خداي هر ګوره ښائسته کړې    زه ئې هم هسي بې صبره کړم هر ګوره
چه په تور و سپین مي اړوي دا څوك دي    که ته نه یې په مخ سپینه په زړه توره
د رقیب له بده خویه به څه وایم    لا چه یار ور سره مل شي هاله ګوره
چه ئې پور د مرګ تر پوره پوري هیڅ دي    هئ توبه د بیلتانه له بده پوره
عاشقي سړی مجنون کاندي رحمانه    کڼه څوك په هوښیارۍ ور وزي له کوره

ما چه جور و جفا بیا مونده له یاره    د وفا طمع به څه کړم له اغیاره
له دښنو به د ښادئ طمع څوك كا    چه د دوست له لاسه غم شي ورد و څاره
دا گله هم ډیره ډیره له هغو شي    هر چه طمع ترې د ښو کیږي بسیاره
دل آزار که دل آزار کا مانه نه شي    حیف خو دا دي چه دلدار شي دل آزاره
طالبان خو تر مطلوبه پوري پره دي    خداي دي تا بې وفا نه کا وفاداره
که له ډیري حیا نه گورې و چا ته    څو خو مخ کړه د رحمان د زړه دپاره

نه رسیږي ستا و حسن وته حوره    څه به رسي و میرمن وته مزدوره
ستا تر قده تر قامته نه رسیږي    که نښتر که سپاري وي که کجوره
تر قامت پوري دي سرو ده سر کوزې    تر رخسار پوري دي شمعه ده بې نوره
هر سړي چه دي و حسن ته نظر کا    ښاپیرئ ئې په نظر وي نا منظوره
چه تا مي د خپلو شونډو ور په خوله کړه    طایفه دي د صوفیانو کړه مخموره
اوس ته وایه چه په څه رنگ دي وستایم    زه خو ستا په مینه لاړم له شعوره
دا جذبه د عاشقئ نه ده نور څه ده    گڼه کله څوك وتي شي له دستوره
اوس به زه د شب خیزئ څه منت وکړم    چه چهره دي کړه په خوب کښې را حضوره
چه په ننگ و په ناموس تر لوره کم وي    صدقه شه نا قابله زوی تر لوره
ننگیالي تربرونه ښه وي او که نه وي    ننگیالئ ترله هم ښه ده له تربوره
خوب روئي بې دلبرئ څه په کار نه ده    لکه ونه بې میوې په پاڼو گوره
که د غلوزي لباس وکا غزا وشوه    شهد نه دي چا موندلي له زنبوره
په رحمان د ښایسته ؤ قدر ډیر دي    د طبیب له قدره چا زده بې رنځوره

چه په وقت د ځکندن وکاږې ږیره    ترو نن ولي هسي رنگ یې بې تدبیره
هر سړي چه کانده غم په مخ کښې ویني    له هغه غمه لا نن گرزي دلگیره
چه سبا ارمانوې پند د پیرانو    ولي نن د پیر طلب نه کړې بې پیره
د یار یاد نه دي ځاي څه رنگ په زړه نسي    یاد د غیر چه لري نه کړې له ضمیره
چه د ټوك په طلب گرزې خداي دي هیر دي    فقیري دا هسي چري وي فقیره
دغه غم دي خداي بدل کا په شادئ    زهیر مه شې په آشنا پسي زهیره
هر سړي د هغه مخ په روڼا گرزي    چه ئې خونه د خاطر وي پرې منیره
همیشه پراته په اور و په اوبو وی    عاشقان د لعللو لبو له تاثیره

که هر څو ښایسته ډیر دي په جهان کښي  و هر چا ته خپل آشانا دي بې نظیره
زه رحمان د آزادئ په طلب گرزم  باري نه د تورو زلفو له زنځیره

وقت د نو بهار دي زه جدا له خپله یاره  دریغه دریغه دریغه چه بې یاره ځې بهاره
اور د خوږو زړونو چه د غره په سر بلیږي  شنې لوخړې خیژي له ښنترو له چناره
دا څه عاجزي ده چه زه کښم په کاغذ باندي  راشه وویریږه د عاشقو له آزاره
دا څه اوښي نه دي چه بهیږي له چشمانو  ویني دي بهیږي د زړگوتې له پرهاره
رنځ مي هسي سخت دي هر زمان په ما زیاتیږي  راشه اې طبیبه گوندي مرم د رب دپاره
غرونه دي نړیږي چه په حال ځما خبریږي  سیند د اوښو درومي چه راغلي له کهساره
نور څه نه دي واړه دا نارې د بیلتانه دي  راشه که ئې اوري د رباب له هره تاره
زه یو خوار و زار یمه رحمان په عاشقي کښي  خپل دي که پردي دي راته نه گوري له عاره

خود به وران شې د دنیا بازاره تاړه  هر ساعت د بیلتانه په تاخت لتاړه
لا غنچې په باغ کښي سترگي سپړ دي نه وي  باد خزان ئې د زړه مینه کړه ویجاړه
هسي باد پرې د فنا لوري والوت  د لاله قوله ئې پریسته له ناړه
څه بزرگي به ئې د باز و د همای وي  زباني ذکر که سل رنگ کا خړاړه
که سل زر کاله پرې تیر شي په اوبو کښي  په نرمئ به نرمه نه شي وچه تراړه
تر دا هسي عمره نه عمر بهتر دي  هر چه حال ئې ځانکندن شي عمر واړه
تروله خلاصه بندي ښه یې اې رحمانه  چه د یار د زلفو ځیل دي شي په غاړه

کله په نمر سوزې کله ریږدې په ساړه  کله مرې له لوږي کله مرې په ډیر خواړه
واړه په غوغا دي چه راغلي په دنیا دي  نه ئې هغه وړي په قرار دي نه ماړه
کله لاس په سر و بل ته کیږدي توضع کړي  کله وبله کیږدي لاس په توره په چاړه
خاوري د آدم چه کړې خمیر فرشتگانو  درست ئې په غمونو په دردونو ولاړه
څه شو که څوك نن ساعت وهل کا یا تړل کا  پیښ به په هغه شي چه واهه شي هم تاړه
ښائي که څوك پس له مرگه خاندي په لحد کښي  هر چا چه په دا ژوندون کښي خپسر وژاړه
ویني واړه تلوني هیڅوك نه دي پاتي شوي  یون دي په دا لاري هم د ځوان هم د زاړه
زلفي د دلدار دي چه هر څوك ئې طلبگار دي  لوي دي که هلك دي که عټان دي که واړه

سخ د هغه چا دي چه په درکښي ئې قبول شي　　زار د هغه چا چه ئې له دره وشاړه
ما عبدالرحمن غوندي سلام کړ ورته سلو　　خداي خبر چه کوم يو هغي ترکي ولاړه

چه غرقاب شي تور مژگان په غم د زړه　　نور خراب شي خان و مان په غم د زړه
عبث وايې غم د زړه و بلهوس ته　　څه پوهيږي هلکان په غم د زړه
په بل مخ باندي سوا د يار له مخه　　ما تړلي دي چشمان محکم د زړه
چه ئې عرش و کرسي لاندي تر قدم دي　　بالا تر دې هسي شان قدم د زړه
د خليل تر کعبې دا کعبه ده لويه　　که آباد کا څوك ويران حرم د زړه
که نور خلق قدمونه ږدي په زمکه　　ما دي اېښي په آسمان قدم د زړه
دا مکان چه د اسمان زمکي تر ميان دي　　يو خلوت دي د امکان سلم د زړه
زه مرهم د زړه له چا غواړم بې ربه　　چه کړي نه شي طبيبان مرهم د زړه
صورتي همدمان ډير دي په دنيا کښي　　ولي نه مومي رحمان همدم د زړه

ساقي پورته شه د ميو جام تيار کړه　　عمر هيڅ معطلي نه کاندي تلوار کړه
هر دم تيغ د ستا څما په گلو گرزي　　هر نفس د خپل نفس له تيغه ډار کړه
تر خودئ په هورته بله بلا نشته　　خاد مي د بيخودانو په دلبار کړه
دا پنځه ورځي ژوندون چه غنيمت دي　　شکرانه په دا نعمت د کردگار کړه
که غمخوار غواړې په غم و په اندوه کښي　　ښيښه ډکه د شرابو اختيار کړه
څو دي دوه سترگي غړيږي په جهان کښي　　ننداره په هر ساعت د خپل نگار کړه
هغه څوك دي چه تهمت پرې وايه نشي　　غوږ په هيچا باندي مه باسه خپل کار کړه
مدعي چه په خوله ورشي هغه وايي　　گوش و هوش د محبانو په گفتار کړه
بې وفا دي د دې دهر ياران واړه　　چه دي پس له مرگه يار شي هغه يار کړه
رحمان وايي د دنيا چاري فاني دي　　البته په نا خبرو اعتبار کړه

باړه وتړه هاله کښت و زراعت کړه　　تقویٰ دار شه هاله طمع د جنت کړه
عاقلان په وړاندي ځي په ورستو گوري　　په دنيا کښي سر انجام د آخرت کړه
سم د لاسه کار هر گوره ډير مشکل دي　　څو لا نه يې غريب زيرمه د غربت کړه
چه نور خلق ملامت در باندي وايي　　لا پخوا تر خلقو خپل ځان ملامت کړه
چه عقبیٰ ته د دنيا په اجر مومې　　خو هم دا عمارت هلته عمارت کړه

څو به ګورې د قيامت و ورځو شپو ته خو هم دا جهان په ځان باندي قيامت کړه
چه نيکي بدي په تله کښي تلل شي خود پخپله تله واخله عدالت کړه
که لښکر د حرص هوا درباندي زور شي سر دننه په قلعه د قناعت کړه
دا به نشي چه ستا څټ او د حق مخ وی که حق غواړې ته هم مخ په حقيقت کړه
هغه زړه چه عرش الله دي ګوره کوم دي څو دي توان شي د جمله زړونو خدمت کړه
وړاندني هم واړه ستا په څير سړي وو ته هم پاڅه د هغو په څير همت کړه
د دنيا چاري همه واړه فاني دي باري پورته شه يو بل رنګه حکمت کړه
په طبيعت د عاشقانو دارو نه شي درومه بله خوا دارو د خپل زحمت کړه
څو دي حق موندلي نه دي مه جار ووزه په دا مرسته دا جهان واړه لت پت کړه
اې رحمانه اول ته نصيحت واخله دغه پسه بيا و بل ته نصيحت کړه

چه می مينه خداي په تا باندي پيدا کړه ترکه ما په هغه ورځ خپله رضا کړه
اوس د ستا رضا جفا کړې که وفا کړې ما د ستا جفا قبوله په وفا کړه
ګل په لعلو و په ګوهر کله څوك پيري بې له ما چه تا خندا کړه ما ژړا کړه
بې له ما چه د ستا غم په هوس پيرم کوم وګړی په هوس د غم سودا کړه
دوه ياران به دا رنګ نه وي چا ليدلي چه يوه ورته ښکنځل کړه بل دعا کړه
ما و درست جهان ته شا و تا ته مخ کړ تا و درست جهان ته مخ و ما ته شا کړه
ډير هندکی په جهان ګرزی د چا ياد دي عشق عالی پايه د هير او د رانجا کړه
هم په دا ئې تر همه ؤ نام بلند شه چه قبوله غندليب د ګل جفا کړه
نا آشنا د بيلتانه له غمه څه زده خداي دغه خواري په بحره د آشنا کړه
عاشقان د يار تر سپيو هم ځاريږي ګڼه ما د رقيبانو څه پروا کړه
زه رحمان چه ستا د حسن ثنا خوان يم ستا له رويه درست جهان ځما ثنا کړه

نه يم خوښ د سرو ګلونو په سايا زه خوښ يم ستا د مخ په اور باندی جليا زه
په اور سوي ښهر وران وي څه حکمت دي سوي ستا د مخ په اور يمه بسيا زه
خپلوم به دي په هر رنګ چه خپليږې که دي مومم په دروغ که په رښتيا زه
نن راغلي په جهان يې که ديدن کړې نه به ته په دنيا راشې نه به بيا زه
دا اوږدې وعدې چه ته کوې صنمه کاشکی بيا مومم فرصت په دا دنيا زه
چه له ډيري حيا نه ګورې و چا ته غوڅ کړم غوڅ کړم د ستا ډيري حيا زه

چه له غمه له اندوه دي مړ نه يم    سنگ آهن يم آدم نه يمه گويا زه
که جوړه تلي څوك و قبرو ته دريغه    ژاړم دا چه يا به ته نه يې او يا زه
هميهشه د خپلو اوښو له سيلابه    سرگردان يم تر فلك و تر آسيا زه
که څوك قياس څما د ډيرو اوښو وکا    هسي گرزم لکه خس پاس په دريا زه
زه رحمان د يار ثنا کولی نه شم    کاشکي مه وي په جهان کښي څه گويا زه

اي څما د زړه آرامه راشه راشه    سر و قده گل اندامه راشه راشه
چه همه واړه خوبان دي مقتديان دي    د همه واړو امامه راشه راشه
بې تا نشته هيڅ حرمت د عاشقانو    د مشتاقو احترامه راشه راشه
خداي زده بيا به هسی وقت وي او که نه وي    زه ويريږم له ايامه راشه راشه
نن هنگام دي که وفا کړې که جفا کړې    چاري نه شي بې هنگامه راشه راشه
دا جهان د مسافرو رباط دي    تله دي تله دي له دې گرامه راشه راشه
پري رويه سنبل مويه ملك خويه    عنبر بويه لاله فامه راشه راشه
شپه لا پريږده روڼا ورځ را باندي شپه شوه    د رحمان ماه تمامه راشه راشه

بيا مى زړه د تورو زلفو مسخر شه    چپ و راست مى د حبشو تور لښکر شه
هر طرف مي د دعا غشی گذار کړل    ولي يو هم هسي نه وُ چه کارگر شه
و هر لور ته چه غوږ باسمه غوغا ده    يا ناري د بيلتانه دي يا محشر شه
واعظان خو وعظ کاندي باري څه کا    چه د عشق په ليونيو ئې گذر شه
چه پدر غوندي ئې ما ته نصيحت کړ    په ديدن د ستا هغه څما پسر شه
ستا په درکښي چه پراته دي نيکبختان دي    چه د ستا له دره ووت در بدر شه
د عشق زخم به څوك څه گنډي رحمانه    چه گنډون ئې په پرهر باندي پرهر شه

په دوران مى هسي رنگ دلبر پيدا شه    گويا بل د نمر د پاسه نمر پيدا شه
يا طالع د زمانې يا څما بخت دي    چه دا هسي رنگ شيرين بشر پيدا شه
چه قاصد د ورك يوسف زيري پرې وکړ    د يعقوب د سترگو بيا نظر پيدا شه
عشق دي دا که يو فساد دي نه پوهيږم    په جهان کښي چه دا شور و شر پيدا شه
دريغه نخل د عشق مه وي زرغون شوي    چه له ښاخه ئې د غم ثمر پيدا شه
ملائك د عشق له غمه خبر نه دي    خو هم ما لره دا سخت سفر پيدا شه

يو د ترکو بې نيازي بل عاشقی شوه — په پرهر باندي مي بل پرهر پيدا شه
بيا به روغ د عاشقۍ له رنځه نه شي — په هر تن کښي چه دغه اثر پيدا شه
د نا اهل زوي په پلار په څه ښادي کا — چه له پشته ئې لئيم پسر پيدا شه
چه هنر عيب کوي عيب هنر کا — د رحمان په دور دا هنر پيدا شه

هيڅ مې نه زده نه پوهيږم دا څه پير شه — چه دلدار مي د اغيار په شکل څير شه
زمانه مي د رقيب له لاسه وژني — چه مي سپی ګانړه هغه را باندي شير شه
د هجران غمونو هسي په عذاب کړم — هغه عيب چه مي لږ ګانړه اوس ډير شه
چه په تيغ مي لوبي کړې سزا مي دا وه — ښه چه غوځ مي زړه د ترکو په شمشير شه
تير ساعت به د هيچا په لاس کښېوزي — اوس به څه وايم و چا وته چه تير شه
چه مي نوشه د هجران پياله کړه تلخه — د وصال دولت مي کل زهر و ګنډ هير شه
چه ئې نه په وفا يادنه په جفا وي — سکه رحمان د هغه يار له دله هير شه

چه نصيب ئې سينه چاکه زړه افګار شه — جرس څکه په فرياد و په چغار شه
چه ندا د عاشقۍ په عاشق وشوه — د غفلت له خوبه پاڅيده بيدار شه
عبادت د ريا کار څه پکار نه دي — لکه غوك هسي په بحر کښي مردار شه
د جاهل زهد په زهد حساب نه دي — لکه مال په خمرو خرڅ د خمر خوار شه
مشقت د نادانانو واړه پوچ دي — لکه بې بارانه ابر تش غبار شه
علميت د بې عملو عالمانو — لکه ګنج د کتابونو په خره بار شه
چه ئې کاندي و نا اهل و نا قابل ته — نصيحت د ناصحانو څه په کار شه
د رحمان کلام په غوږ د بې هنرو — لکه در په لاس د طفل هسي خوار شه

که په عقل پسې لاړم پکار نه شه — که له بخته مي ياري غوښته يار نه شه
غرونه غرونه خوب په څاڅکي اوبو دروملي — يار په سيند ځما د اوښو بيدار نه شه
معلوميږي چه کم بخت د درست جهان يم — چه د درست جهان دلدار مي دلدار شه
ما غندي او رقيب ستائي طالع ګوره — چه سړي ورته د سپی په مقدار نه شه
که ئې سل ځله اقرار را سره وکړ — دا ځما نا قرار زړه په قرار نه شه
ډير غمونه دي چه ئې وخورمه پخپله — په دنيا کښي مي بل هيڅوك غمخوار نه شه

که مي سل نصيحتونه ورته وکړه هغه خداي بې لاري کړي په لار نه شه
سهل کار دي که رحمان په زړه آزار شم چه خاطر د هغې مستي آزار نه شه

چه له سترګو مي خوناب د زړه عيان شه له نظره مي هر سنګ در و مرجان شه
خراب زړه مي ژړل د يار له غمه بيا په اجر د هغې ژړا خندان شه
کمينۍ له جمله آفتو خلاص کړم لکه خاوري د دښمنو په چشمان شه
د غصې زهر ئې شهد شول په صبر د خليل په څير آتش پرې ګلسان شه
عشق يو داد دي په عاشق باندي له خدايه هسی نه چه و هر چا وته عيان شه
چه د يار زلفي رخسار شو په زړه نقش خپل خلوة مي خراسان و هندوستان شه
د رنځور علاج ترخه ترخه دارو وي دغه درد دي چه هم درد وهم درمان شه
چه د ستا د خولو بوي ور باندي راغي د عطار په مخ د اوښو رود روان شه
علامت د استغنا به ئې څرګند وي هغه څوك چه تير تر ځان و تر جهان شه
د ګريبان په چاکول ئې څه لارغه وي چه ځګر ئې ورښي چاك د ګريبان شه
نادانان به د دنيا غمونه کاندي مرد هغه دي چه په زيرمه د خپل ځان شه
نشانه د نادانۍ به نوره څه وي چه سړي په خپل کردار باندي پښيمان شه
آدميت څه په دولت نه دي رحمانه بت که جوړ شه د سرو زرو نه انسان شه

په دنيا کښي له دنيا کوښه کنار شه سمندر غوندي په اور کښي ګلعذار شه
پس له مرګه که ژوند غواړې سر ګياه کړه په پريکړي سر بيا نوي مرغزار شه
دا ترخې اوبه به څه کوې د بحر خود پخپله د ګوهر په څير آبدار شه
بې له خدايه نور د هيچا منت مه کړه په وچ کاڼي باندي ونه د کهسار شه
که د وني په څير ګل و ميوه غواړې ځان په نمر کړه سايبان د هر خاکسار شه
دست په دست که د خپل کار په درستول يې لا پخوا تر ځان وړنبي د بل په کار شه
که دي ويره شي له خپلي در ماندګۍ د درماندو دستګيري کړه خبر دار شه
که هوا دي د جنت په خاطر ګرزي خاك نشين په آستانه د هغه يار شه
که په توره تاريکۍ کښي رڼا غواړې نندارچي د يار د زلفو د رخسار شه
که پکار دي د سرو شونډو شيريني وي د خپل ځان په وينو سور لکه انار شه
که راضي يې چه دي باغ شي د زړه سبز په ژړا لکه باران د نوبهار شه
د رحمان په عاشقۍ کښي سترګي وشوې چه څوك وايې عاشق ړوند دي هغه خوار شه

پاځه یو ځله سیراب د عشق په جام شه    په ساغر د ماه و مهر می آشام شه
له اوله بندګي بيا آزادي وي    که مقصود د آزادۍ لرې غلام شه
د صیاد له وحشتونو خپسر خلاص کړه    لکه مرغ خانګی پخپله رام شه
ژوندی ځان په زمکه خښ کړه لکه تخم    که لویي غواړې د خاورو په مقام شه
درست جهان د کمینۍ په خوي وخوره    لکه زمکه هسي لاندي تر اقدام شه
په نیستۍ کښي د هستۍ مرتبه ګوره    نندارچي په ویرانه کښي د خپل بام شه
و دښمن وته خپل حال پخپله وایه    ځان پخوا تر مرګه ووژنه مدام شه
په مستانو کښي د عقل ښتن غل دي    که په نورو خلقو خاص یې دلته عام شه
اې رحمانه د بلبلو ژبه زده کړه    دغه پسه په صفت د ګل اندام شه

د دنیا د سود دپاره غمګین مه شه    غم د دین و د ایمان خوره بې دین مه شه
هر ګره ګره کشای لري کم بخته    نا امید له خدایه غوټه جبین مه شه
ډیر خفت دي دارنده چه دانه چین شي    څو دي آب و دانه شته دانه چین مه شه
هر مرغه چه د بل غوښې خوري مردار وي    ځان حلال کړه لکه زاڼه شاهین مه شه
د ذرې په څیر آفتاب په طلب خپل کړه    لکه تیږه هسي پروت په زمین مه شه
کار په تش لستوڼي نه کیږي بې لاسه    لاس په ډیره کړه بې لاسه آستین مه شه
عاشقي او خود بیني دي سره لري    که مطلب دي عاشقي وي خودبین مه شه
په خپل کور کښي دي سفر دي که پوهیږې    مسافر د هندوستان و د چین مه شه
خپل تابوت درته ولاړ زین کړي آس دي    ته په زیرمه د بل آس و د زین مه شه
چه تقویٰ دیانت نه لري رحمانه    د دې هسي همنشینو نشین مه شه

په امید د آینده ؤ زړه ور مه شه    نسیه نقد ځبله بیل کړه اوتر مه شه
په امید امید ئې خلق نا امید کړه    د فلك له رهزنۍ بې خبر مه شه
د دنیا بادشاهان خواست کړی له فقره    ته بادشاه د هسي ملك شه خواستګر مه شه
د همای په څیر طعمه کړه وچ هډوکی    لکه مچ طالب د شهد و شکر مه شه
ځان صدف غوندي و خاورو ته کړه څیرمه    لکه ځګ هسي د بحر په سر مه شه
ډیر عزیز دي موم دلان تر سنګدلانو    ته یو څاڅکي شه د اوښو ګورهر مه شه
حیوان هم په تسبیح د خداي مشغول دي    ته انسان یې له حیوانه بتر مه شه
نفس شیطان سړی و کفر ته وباسي    رحم فهم په ځان وکړه کافر مه شه

ټپ ړانده دي عاشقان د يار له عيبه — ته ټپ ړوند د هغه يار په هنر مه شه
دغه ځاي د بيدلانو دي رحمانه — د دلبرو په کوڅه دلاور مه شه

ته ناحق نه ما کينه کړې کينه ناکه — په کينه به آئينه نه کړې ته پاکه
څوك بې وجهي چا ته توره تيره اخلي — خپل عمل دي چه دنيا ئې کړه هلاکه
چه خندا ئې د بلبل په آه سرد کړه — خداي د گل گريوان پاره کړ سينه چاکه
ځکه سپينی شوې اول د حباب سترگي — چه له بعضه په درياب کښې چوی تڼاکه
که تن زمکه کړې زړه تخم باران اوښي — لکه نخل به سرو وکاږې له خاکه
بلا دست به شې هاله په نورو ونو — که تعليم د زير دستیَ واخلې له تاکه
بيا به مومې د ترکو واك و حکم — څو ونه ووزي د درست جهان له واکه
د هغه جهان ژوندون به هاله مومې — چه لاس وکاږې د دې جهان له ژواکه
ته چه ژغورې سر و مال په عاشقي کښې — عاشقي دا هسي چري ده کاواکه
چه دا هسي لوي ميلمه ته کور ته بيايې — اول غولي پاکيزه کړه له خاشاکه
په دويئ کښې به ور نه شي تر توحيده — څو ضمير دي خالي شي له اشراکه
دا همه واړه حجاب دي چه ليده شي — نور دي حسن بالا تر دي له ادراکه
په ظاهر لباس غلط د سړي مه شه — مينځ ئې گوره له چغزی اوله مټاکه
اوليأ په جهان ځکه څرگند نه دي — چه پاك ژوی خپسر نغاړي له ناپاکه
هيڅ وفا ئې له هيچا سره و نه کړه — ترو رحمان به څه مانه کړي له افلاکه

گيډه وتړه په پړي سره کلکه — د روټیَ طمع و مه کړه له فلکه
هر سائل چه سوال د نان کړي له فلکه — گويا غواړي په کچکول کښې اوړمکه
له آسمانه چه څوك طمع د وفا کا — دغه طمع ئې طاعون گڼه بې شکه
له بارانه سره هسي ږلیَ ووري — چه هر زخم ئې بد تر وي تر ټوپکه
که په چا ئې شفقت و مرحمت وي — ظلم خور به ئې تير وي تر اوزبکه
موړ به نه شي هيڅ سړی بې قناعته — که ئې خونه وي په سيم و په زر ډکه
بيا به نه مومې کمال بې کمينیَ — که خيمه دي وي د عرش د پاسه لکه
که جهان په نور عالم باندي فراخ دي — په تنک چشم باندي تنگ شي له چشمکه
د دې دهر په يارانو کښې آب نشته — که ئې غواړې تر سما و تر سمکه

ترخې اوښي د عاشق آب و نمك دي   خداي دی نه کا څوك بې آب و بې نمکه
داد زاری اندیښنې مه کړه رحمانه   د دنیا چارې په تله دي تر دمکه

چه خیمه ئې د سیلاب په مخ شوه لکه   د حباب تماشا گوره تر دمکه
هیڅ پکار نه ده ویسا د پاڼ په سیوري   لا ترې لاندي وي د څو لرگو کوډلکه
دا د لاندی به هم واړه چیت پیت شي   مگر سر وي چا وکښلي تر فلکه
چه په اصل خداي نسکور وي پیدا کړي   څوك به څه خوري د دې دهر له ښانکه
چه دښمن ئې وي له دوسته اړولي   د هغه احتیاط بویه له کومکه
راشه واچوه د نفس و خوله ته خاوره   څو دي نه ده خوله د گور په خاورو ډکه
هر چه ډکه ئې د گور په خاورو خوله شي   په هغه به وي حرامه نوره څکه
که نور څوك تبارکي کا ځبله نوره   و رحمان وته خپل یار دي تبارکه

که په هجر کښې څوك ما پوښتي له حاله   حال خو دا دي چه ناتوان یم بې مجاله
زه د یار په دیدن ځکه شتابی کړم   چه د عمر بقا نه وینم تر کاله
چه تر حسنه تر جماله ئې ځار نه شم   شرمنده یم د خوبانو تر جماله
ته و ما ته نصیحت مه کړه ناصحه   عشق بې نیاز دي له ثوابه له وباله
بې د خپل آشنا د حسن له تعریفه   هیڅ مي مه پوښته له نوره قیل و قاله
ما د عشق په درس کښې نور څه لوستي نه دي   بې له زلفو بې له خطه بې له خاله
په دنیا په آخرت مي دي خداي نه کا   بې نصیب د مهرویانو له وصاله
که یار سر په دویدن غواړي مه جار ووزه   دغه حکم رحمان کړي دي دلاله

څو تر مینځه ورانه نه کړې د تن پوله   و به نه رسې تر خدانه تر رسوله
خداي و تا ته دین دنیا په غوره کښیښود   تا دنیا کړه په دا دواړو کښې قبوله
تر حرص په هورته بله بلا نشته   دا بلا د ستا په خونه شوه نزوله
یو ساعت د خداي په ذکر مشغول نه شوې   تمام عمر د خپل ځان په غم مشغوله
چه باقي زندکاني په فنا پلورې   ځان په کوم دانش دانا بولې مجهوله
له خالقه روگردان شوې و مخلوق ته   بیا و ځان ته عاقل وایې نا معقوله
نصیحت لکه هلك در باندې تریخ دي   د دنیا په شیرینۍ پسې ملوله
چه رحمان غوندي خورسند نه شې په نول کښې   خلاص به نه شې په هیڅ رنگ د زړه له نوله

خبر نه يم چه ئې راوستم له كومه  بيا مي كومي خوا ته استوي چه درومه
لكه ړوند چه لاس د بل په اوږه كيږدي  هيڅ ژوره لوړه نه وي ور معلومه
خداي را پيښه نرۍ لار كړه ناليدلې  لكه ورانه ما شوړه چه وي سر گومه
خراب زړه مي تورو زلفو ته هوس كړ  بارې كوت د مرغه په څير په لومه
هسي كوډي د عاشقۍ را باندي وكړې  چه سنگين خاطر مي نرم شه تر مومه
چه ئې هيڅ له خدايه ترس و ويره نه شي  الغياث د دلبرانو له رسومه
كله را كاندي شراب د لعلو لبو  كله جام د زهرو را كاندي چه شومه
د مطلوب له طالبانو چه ځان شميرې  اي رحمانه اول سيال شه بيا ئې مومه

اعتماد به په دنيا كوې تر كومه  دا رفتار به په پس شا كوې تر كومه
څو به پټ له مرگه گرزې سپينه ږيره  په روښانه ورځ به غلا كوې تر كومه
چه د دهر له يارانو وفا غواړې  صيادي به د عنقا كوې تر كومه
د پيرۍ علاج په ډانگ په لوړ نه شي  دغه كار به په عصا كوې تر كومه
ته چه پند وايې ناصحه و رحمان ته  شكايت به د قضا كوې تر كومه

ډير عمر مې تير كړ بيهوده په زمانه  نور دي ځما سر وي او د تركو آستانه
هيڅ مي حاصل نه كړه په شيخۍ و په تقويٰ كښې  پس له دې مي وار دي هر چه شي په ميخانه
شيخ و شيخي ورد و وظيفه و ذكر فكر  زه و ساقى جام و باده چنگ و ترانه
زه و زاهدانو ته حيران يم دوي و ما ته  ديوانه بده خندد و ده به ديوانه
گنج د عقل جار شه د عاشق تر څاڅكي اوښو  نه خروار د عقل نه د عشق يوه دانه
تيغ د يار له لاسه په مرۍ د عاشقانو  هسي لذت كا لكه د ميو پيمانه
خداي لره به ور شم په سودا د يار له مخه  بل مقصود مي نشته په كعبه په بتختانه
زه له ډيري ميني په تش بوي د يار شيدا يم  تل د لوندو ختو اوبه لږ وي بهانه
ځكه زاهد زهد كا د يو جنت دپاره  سر ښندلي نشي په اوربل د جانانه
گوره د منصور هسي په دار نه شې رحمانه  مه كړه دا د عشق خبري مستى رندانه
بل نام و نشان د عاشقۍ نشته رحمانه  بې نام و نشان شه كه ئې غواړې نشانه

كه ستا خپله سيه وريي نه وي دښمنه  آئينه ځما د زړه نه ده خچنه
ته چه ما وته د عيب په نظر گورې  دغه واړه عيب ستا دي اې عيب ژنه

خپل صورت په آئینه کښي هر څوك ګوري     که څهره د چا صفا ده که ریمنه
چوهاړي د حلال خور په نامه بولي     له ښو خلقو بد ګوئي نه ده ممکنه
ته چه بد له بله وایې زه ویرېږم     چري خپله بدي نه کړې معینه
تر هغو به وړنبي ستا عیب څرګند شي     چه هر چا وته دي کړې ده خندنه
هر څه تخم چه کرې هغه به یوسې     خپله خپله میوه نیسي هر ونه
که له خپله عیبه ځان ژغورې رحمانه     د هیچا له عیبه مه کوه پوښتنه

که له مخه یوه خوا کا حجابونه     خداي به ورکا و خوبانو توابونه
کله وي چه یو په رنك د هغه یار شي     که هزار شي په آسمان کښي آفتابونه
په ګرداب د زنخدان ئې هسي غرق یم     هیڅوك مه شه غرق په هسي ګردابونه
لکه زه چه ئې له غمه په عذاب یم     خداي دي نه بړدي په چا هسي عذابونه
ګفتګو مي هیڅ اثر ور باندي نه کا     که له غمه ئې تصنیف کړم کتابونه
په یوه ځواب مي رد کا هزار سواله     هسي کاندي د سوالونو جوابونه
هیڅ پایاب د فن قریب ئې مونده نه شي     څوك به څه غواړي د بحر پایابونه
که لږ سترګي و بله کیږدم راته وایي     په یاري کښي عالم کله کا خوابونه
مال و ملك ئې همه واړه اوبه یوسي     د هغو چه ځي له سترګو سیلابونه
د کږ ورځو محراب ته ئې حیران یم     څه نسبت لري بتان و محرابونه
ما هاله له پارسائۍ نه وُو لاس وللي     چه په لاس کړه مطربانو ربابونه
ارغواني جامې چه آغوندي رحمانه     بیا ئې جوړ کړه ستا د قتل اسبابونه

را کوي د بیدردۍ پیغورونه     بلوي مي په تندي باندي اورونه
نور څه نشته واړه غوښي دي د زړونو     چه ورژلي شي د ترکو په تیغونه
هر نګاه ئې په وکښه د زړونو شیر دي     همیشه را باندي ازمائي زورونه
خداي دي تور چا ته د تورو سترګو نه کا     عالمونه ئې ورکیږي په تورونه
یو د حسن اور دي بل کړ په جهان کښي     په دا اور باندي دي وسوه ډیر کورونه
زه د یار په مینه غل کړم رقیبانو     ګنهٔ نور ئې کوم راپوري دي پورونه
د رحمان د عاشقۍ هسي غږ وشه     چه بر پاي شو په هر ښهر کښي ښورونه

په خاطر مي غلبه شوه ستا غمونه    لږ د خداي دپاره کيږده قدمونه
څه خو قياس ځما د ډيرو اوښو وکړه    چه په تن کښي مي وُو چري دا رودونه
هر چه ستا په دم ژوندي دي نه رغيږي    که بې تا په ځان پوکي هزار دمونه
که هزار هزار دمونه په ځان پو کا    نور به نه کا په دمونو قسمتونه
له قسمته خلاصيده د هيچا نشته    که داخل شي د مکې به حرمونه
سر ئې کله په کوشش تر ځايه رسي    څو د خداي له لوري نه وي کرمونه
چه توانگر د قناعت په خزانه شي    نور به څه کاندي دينار و درمونه
قسم وخوري له خوبانو بيا ئې مات کا    څه باور دي د رحمان په قسمونه

ژوندي کاندي د دنيا کار و بارونه    په مړو پريواته د خاورو انبارونه
څوك سر تور پښې ابلي خاورو لره درومي    چا کاږه دي په سر ايښي دستارونه
ښه استوگنه د دوه ورونو سره نه شي    بلکه اخلي يو تر بله آزارونه
د يوې وني له ښاخه پيدا کيږي    په چمن کښي هم گلونه هم خارونه
همره خلق هره ورځ له دنيا درومي    چه ئې نه په چا حساب شي نه شمارونه
يو يووار دي په هر چا باندي تيريږي    هميشه به په چا نه وي دا وارونه
ډير له سره مي تودگي بازارگی تير دي    څوك دي نه کا په ما قنج و بازارونه
جدايي د آشنايانو هر دم کاندي    په رحمان باندي د تورو گذارونه

دريغه وليدي يو ځل هغه مخونه    چه دراز لري مژگان دراز قدمونه
دراز قد دراز مژگان درازی زلفي    وړې شونډي وړه خوله واړه غاښونه
د آسمان شمس و قمر به ترې قربان کړم    هم د زمکی په سر واړه سره گلونه
چه ئې ووينم په مخ مي اوښي درومي    د پسرلی له مخه ووري بارانونه
که يو ځله ئې مخ ووينم په سترگو    ما په زړه کښي قبول کړيدي تدرونه
د هجران په شپه سور کټ راته سور اور شي    يو زمان مي بادی نه لگي اړخونه
توري زلفي دي په سپينو ليچو زانگي    ښاماران دي د چنډنو په ښاخونه
که خداي غم د جدائي ورته آسان کړ    و رحمان وته آسان دي نور غمونه

ما وې زه به نه کړم په خوبانو باندي مينه    مينه د خوبانو وچوي د صورت وينه
خداي ځما په بخره عاشقي ک ړه له ازله    خوښ يم په دا بخره که ترخه ده که شيرينه

زهر دي که قند دي هم پخپله خوله څرگند دي  نه مومي څوك خوند د بل د خولې له انگبينه
زمکه هغه سوزی هر چه اور ور باندي بل وي  روغه خلقه شوه د رنځورو تماش بينه
ښه توښه مي نسي په تش ډاډ د کور و کلی  مرد بويۀ چه واخلي د غم پيټي له غمگينه
نور عالم به څه کړم زه مريد د هغه کس يم  هر چه و ما راکا يو پيغام له نازنينه
څو به سوك په سترگو غړوم له هسي غمه  څو به مي تل څاڅي د غم اوښي له آستينه
سر د رحمان درومی د هجران په تيره توره  ته ئې نگهبان شې يا الهَ اِلعٰلَمينَه

يادوې په خوله مکه او مدينه  نسکور پروت ئې د عورتي په سينه
زوړند سر لکه غنچه مراقبه کړې  پټ دي نقش د زړه رخت وي رنگينه
د اطلسو قبا غواړې نه ئې مومې  له ناکامه دي خرقه کړه پشمينه
عبادت دي څو تيري تر معصيت کړې  څه خو ونيسه و ځان ته آئينه
کينه بده ده بې شکه جنگ حرام دي  نه له نفس وله شيطان سره کينه
د مردانو کار له نفسه سره جنگ وي  نه ښځو غوندي له نقشه نگينه
تر ناپاکو نارينه ؤ ده بهتره  پاك دامنه پرهيز گاره ارتينه
د ديندارې ارتينې له يوې گوښې  صدقه شه شل بې دينه نارينه
نيکو کار سړې بهتر دي که خورد سال وي  تر سپين ږيري بد کرداره ديرينه
بد کردار که صد ساله وي و رحمان ته  څرگنديږي لکه طفل شبينه

بيا دي مخ دي جار وتلي څه بلا شوه  دا بلا له کومه لوري را پيدا شوه
دا ځما په يار کښې مهر وفا نشته  که دنيا واړه بې مهره بې وفا شوه
چه ئې هيڅ له خدايه ترس و ويره نه شي  په نصيب می يوه هسي دلربا شوه
چه ئې حسن وته گورم حيرانيږم  را څرگنده يوه هسي تماشا شوه
څه د حد و د حساب خبره نه ده  بې صبري مي تر حسانه زياته لا شوه
قراري مي په طلب کښې ئې حرام شه  بې نمی مي په مذهب کښې ناروا شوه
چه راکښلي مي پرې غشي د دعا وه  هغه نښه می و نه ويشته خطا شوه
لکه پوچ بادام بې مغزه بې حاصله  هسي پوچه بې حاصله مي دعا شوه
عاشقي چه مي له خلقو په غلا غلا کړه  هغه غلا مي په تمام جهان رسوا شوه
څه بهره به له نسيه معاملی مومم  چه مي نقده په ورغوي کښې نسيا شوه
درد بيرته جار و توشه راته پوري  په نصيب مي بله نه وه دا وه دا شوه

یوه بخره هر سړي لره خداي ورکړه ځما بخره آشنائي د خپل آشنا شوه
د تدبیر په دام په څشکله کنبیوزی معشوقه چه مي په مثل د عنقا شوه
چه ئې زر کړ زیړ رخسار ځما د خاورو عاشقي نه وه په باب ځما کیمیا شوه
څه حکمت د یار په مینه کښې خداي کښیښود چه عاشق لره هم درد شوه هم دوا شوه
دا باران نه دي چه ووري له آسمانه د مرغانو په رحمان باندي ژړا شوه

چه په نور څه پوري زړه تړې بې خدانه څه پوهیږې چه په ځاي کړې که بې ځایه
دا خو نشته چه به تل تر تله پایې که بیا پایې خو تر سلو کالو پایه
که دي سل کاله شي عمر خو به تیر شي دغه پسه بیا به څه کړې راته وایه
سم له لاسه چاري نه شي مرد هغه دي چه بیدار وي و غلیم وته له ورایه
ته په اصل کښې سړي یې څاروي نه یې د چارپایو چاري مه کوه دو پایه
مرتبه به دي د مچ و د میږي شي زړه په غوړو غوښو مه تړه همایه
موړ به نه شې ته په حرص بې قناعته اي په تخت د اورنگ زیب ناسته گدایه
وړاندي سرای لره توښه تړه رحمانه څو سفر دي کړي نه دله دې سرایه

په حالت د عاشقانو نظر بویه په زیارت د شهیدانو گذر بویه
بې مرشده څوك خبر د مرید اخلي غوځ په غم د فرزندانو پدر بویه
بې ریباره رسیده و یار ته گران دي په کوځه د مهرویانو رهبر بویه
بې هنره چا دولت موندلي نه دي په خدمت د صاحبانو هنر بویه
ستا له سترگو مي هر گور ملاحظه شي له دې هسي سیاه دلانو حذر بویه
ښه چه سترگي خداي ملالي کړې د ترکو لږ په زړه د ظالمانو اثر بویه
ستا په داغ به هر یو زړه مشرف نه شي دغه تاج د بزرگانو په سر بویه
چه خبر د رحمان نه اخلي یار بد کا بادشاهان له گدایانو خبر بویه

که څوك لاس له سوده وکاږي زیان نشته په ملنگ باندي قلنگ و تاوان نشته
جدائي له اشنائي نه پیدا کیږي نا آشنا لره هیڅ غم د هجران نشته
د وفا خریدار بل خوا ته دي درومي دا متاع د زمانې په دکان نشته
مگر ځان و خداي ته پاسلي په امان شي گنه بل خوا ته د هیچا امان نشته
هغه یار به زه و کومه خوا ته غواړم چه ئې هیچرته منزل و مکان نشته

دلبران که هر څو ډیر دي په جهان کښي   ځما یار غوندی دلبر په جهان نشته
چه هم قد لري هم زلفي هم سرې شونډې   دغه هسي رنك آفتاب په جهان نشته
عشق عاشق لره یو هسي گلستان دي   چه باغ وته ئې لار د خزان نشته
عاشقان په عشق کښي واړه سلطانان دي   په دا ښهر کښي نیستکار و ناتوان نشته
که مجنون غوندی په عشق کښي څوك صادق شي   د لیلي په دروازه کښي دربان نشته
دانایان به د رحمان په قال پوهیږي   دلته کار د هر نا اهل نادان نشته

هسي زه یم یاره ستا په غم تازه   لکه وي هره گیاه په نم تازه
سترگی وخورم که ئې وچی کړم له نمه   که مي شي په دا ژړا صنم تازه
زه به څه کړم د چا چاری بې له یاره   هر سړي دي په خپل ساه په دم تازه
د یار نوي نوي غم زیروي وصل   رغوي سوي پرهر مرهم تازه
که دي زړه له غمه وچوې دلگیر مه شه   کاتبان کا په چول قلم تازه
ښایسته یاران گلونه نه دي رحمانه   بیلتانه کړه اکثر مړاوي کم تازه

ستا په عشق کښي دروغژن یم سر تر سره   چه له غمه دي ژوندوي گرزم دلبره
زه به ستا له غمه کله شو لا مړ وم   باري دم د خداي په لاس دي ناز پروره
شام سحر مي دغه ستا زلفی رخسار دي   نور مي مه پوښته له شامه له سحره
چه خبر ئې په وصال و په هجران شم   خبر نه یم له فردوسه له سقره
هسي بې سر و سامان دي هیڅوك نه شي   لکه زه چه بې سامانه یم بې سره
یو هنر مي منظور ستا په هنر نه شته   که زه وکړم ستا په عشق کښي سل هنره
هیڅ اثر د رحمان اوښي په یار نه کا   خداي دي اوښي د چا نه کا بې اثره

# ی

زړه مې ورکړ و خودرای    هر چه شوه تکیه په خداي
په سودا د عاشقۍ کښې    یا به شاه شم یا گداي
یا به کښېنم و دونهي ته    یا په سیوري د همای
چه خدای کا هغه به وشي    نه بل خداي لرم نه ځاي
بې دلبره به ور نه کړم    بل و هیچا د زړه راي
پاي بوسي به ئې پرې نه ږدم    څو مې رسي دست و پاي
یا خندا ده په دنیا کښې    یا ژړا ده په واي واي
تر دا دوه چارو په هور ته    نور څه نشته به دا سراي
عاشق بویه چه صادق وي    نه خودکام و نه خود راي
خداي دي نه کا څوك په عشق کښې    جو فروش گندم نماي
زه رحمان پکار پوهیږم    که مې مل شي کار فرماي

دا چه مست په میو راغي یار د چا دي    بیا به تاخت کا په کوم غولي وار د چا دي
چه زړه سوي ئې د حرم په صید هم نه شي    دا بې درد و بې صرفې گذار د چا دي
ما خو نه دي څوك بې وجهې آزار کړي    دا چه ما آزاروي آزار د چا دي
چه ئې درست جهان د مخ په روڼا زیست کا    دا آفتاب غوندي روښان رخسار د چا دي
چه بلبل ئې رسیدي تر گلو نه شي    دا دننه په حرم گلزار د چا دي
چه هیڅ ترس په زړه کښې نه لري رحمانه    دا نا ترس و بې پروا نگار د چا دي

غواصان که گوهر غواړي گوهر دا دي    بیدلان که دلبر غواړي دلبر دا دي
ځما یار غوندي به بل یو دلبر نه دي    د جمله ؤ دلبرانو سرور دا دي
خوند د لبو او د چاه زنخدان ئې    راشه گوره زمزم دا دي کوثر دا دي
چه دي وصل او هجران وته نظر کړم    زه گمان کړم جنت دا دي سقر دا دي
ته خطبه په منبر څه بولې خطیبه    د قدم کیږده په ځان باندي منبر دا دي
د مکې سفر آسان دي مرد هغه دي    چه له ځانه سفر کاندي سفر دا دي
هر منعم چه دل جویي د قلندر کا    هغه نه دي قلندر قلندر دا دي

چه توانګر د قناعت په خزانه شي　　بل توانګر په جهان نشته توانګر دا دي
دا هنر نه دي چه خاوري څوك سره زر کا　　چه زر خاوري کا رحمانه هنر دا دي

هسي رنګ نعمت را کړي خداي و ما دي　　چه هیڅ څیر بها ئې نشته بې بها دي
يو خو دا چه ئې په شکل د آدم کړم　　دويم دا چه محمّد مي رهنما دي
لاس و پښې و غوږ و سترګي خوله و ژبه　　يو صورت مي په څو اسمه مسما دي
آسمان زمکه نمر سپوږمۍ و روښان ستوري　　درست جهان مي و نظر ته تماشا دي
شپه و روځ د ماه و مهر له پرتوه　　مخ د زمکی راته درست نقره طلا دي
په شپه مښك په ورځ کافور را باندي ووري　　درست صورت می په کښي غرق سر تر پا دي
چه هر دم زندګاني نخښي و ماته　　هر نسيم د يار له لوري مسيحا دي
د چمن و سرو ګلونو ته چه ګورم　　هرهر ګل راته له ورايه په خندا دي
د ګلګونو ميو ناوې راته ناسته　　زنګاري قميص آغوستی د مينا دي
خپلي ويني په ورغوي کښي نيولي　　هر ساغر د مي فروشو جان فدا دي
د ښه رود په غاړه ناست سرود په لاس کښي　　هر مطرب لکه بلبل هسي ګويا دي
چه دا هسي معرفت ئې پرې پيرزو کړ　　په رحمان باندي منت د پاک مولا دي

يو يو داغ په ټټر ايښي د هر چا دي　　که پادشاه د ولايت دي که ګدا دي
شرابي په سر چشمه د دنيا نشته　　تشنه لب ئې ګوښي ګوښي په غوغا دي
لږ راحت په ډير زحمت سره مونده شي　　د دې دهر خس حرام دي که ويړيا دي
د دنيا ښادي بې غمه مونده نه شي　　لږ خيرات د شوم له کوره په بلا دي
فراغت پرې باندي ولي حرام نه وي　　چه داخل په سراچه د دې دنيا دي
د مجنون د حال پوښتنه به څوك څه کا　　جهان واړه کوراکور مجنون ليلا دي
عشق يو هسي رنګ افسون په عالم پو کړ　　چه عاشق په تورو سترګو نا بينا دي
د هر چا ئې بخري ورکړې ګوښي ګوښي　　خپل قسمت د هر سړي جدا جدا دي
ورکړه را پيروده ټول د بل په لاس دي　　هلته دخل نه ستا دي نه څما دي
په هر څه چه د صاحب د زړه رضا شي　　په بنده که ناروا دي هم روا دي
خواه نا خواه که ئې رضا وي او که نه وي　　د قسمت رسد رضا و نا رضا دي
ځان جهان سپارلي بويه و هغه ته　　چه ئې حکم جاري شوي په هر چا دي

د هر چا په لاس چه حکم حاکم ور کړي     جهان واړه د هغو په مدعا دي
چه مولٰيٰ ور سره مل نه وي رحمانه     که لښکر ور سره وي يك تنها دي

د ساقي په لاس کښي جام د مي ناب دي     مطرب اينښي په زانو باندي رباب دي
ته چه ما وته توبه وائې نا صحه     په دا وقت کښي چا څخه د توبې تاب دي
زه چه ځان منع کوم د عشق له کاره     په دا هسي کار کښي کوم سود و ثواب دي
دا آسمان چه لوي په عقل کښي باله شي     په محيط د عاشقي کښي يو حباب دي
هر چه ژغوري سر و مال په عاشقۍ کښي     هغه کړي کور په مخ کښي د سيلاب دي
ته چه خوب غواړې په عشق کښي راته وايه     کوم چا کړي د زمري په خوله کښي خواب دي
بې عمل که کتاب کيږدي په سر څه شو     گويا اينښي ئې تر پښو لاندي کتاب دي
چه د شر د عملونو ته خير غواړي     تشنه لب غوندي سر شوي په شراب دي
د دښمن له مکارۍ وويريږه     په نرمۍ ئې غلط مه شه سنگ در آب دي
عبادت په شتاب هسي کړه رحمانه     لکه عمر چه دي تلونی په شتاب دي

هغه زړه چه ستا د عشق په اور کباب دي     که مرهم ور باندي کيږدې ډير ثواب دي
حجابونه له اغيارو مناسب دي     د يارانو په يارۍ کښي څه حجاب دي
بې تا چه ښايسته وي بې حسابه     په هغو کښي هم ستا حسن انتخاب دي
لکه گل چه تر آفتاب پوري خجل وي     دغه هسي ستا تر مخ پوری آفتاب دي
دا د ميو څه مستي او سرخي نه ده     تيغ د سترگو ئې په وينو کښي عرقاب دي
زه رحمان به څه ځواب کوم و يار ته     و ژونديو ته د مړيو څه ځواب دي

چتر سنگ و تر آهنه ئې زړه سخت دي     زړه هغه لره ورکړي ما کم بخت دي
خدايه کله به هغه غل راته ايل کړې     چه لوټلي ئې ځما د خاطر رخت دي
همره غم به نور په هيچا باندي نه وي     لکه غم چه د خپل يار په ما يک لخت دي
مگر بيل په تيره تيغ شي يار له ياره     گنه ښاخ له خپله ښاخ سره درخت دي
د پهلنگ او د پيرۍ حاجت ئې نشته     د يارانو نشستن د زړه په تخت دي
چه له ډيره درده وخت پيژاندي نشي     په رحمان باندي بې ياره هسي وخت دي

که ئې مهر و محبت که ئې عناد دي    ما د یار په یارئ کړي اعتماد دي
زه و یار که په تن دوه په معنیٰ یو یو    هزار خوني واړه ښهر یو بغداد دي
هیڅ بیلتون ځما د یار و بله نشته    کار همه واړه موقوف په خپل معیار دي
هیڅ موقوف د معشوقې په حسن نه دي    د عاشق خاطره په خپلې میني ښاد دي
زه خپل آه آتشین له خدایه غواړم    د آشنا خاطره که موم دي که فولاد دي
چه پریشان د یار د زلفو په څیر نه وي    جمعیت د هغو زړونو لوی فساد دي
چه د آه و د فریاد طاقت ئې نه وي    هر سکوت د بې طاقتو آه فریاد دي
سل په دا رنګه نومونه د عشق نور دي    لکه نوم چه د مجنون و د فرهاد دي
چه ئې زړه شي هلته کښیني هلته پاڅي    عشق د عقل و د هنر کره داماد دي
بادشاهان په عاشقئ کښې ملنګان شي    ما و تا غوندي وګړي د چا یاد دي
که رښتیا د خرابئ سره ګنج وي    فوقیت د شاګردانو په استاد دي
چه په یار پسي تر ځان تر جهان تیر شي    په رحمان ځمونږه هسي اعتقاد دي
چه دا نور شاعران کاندي هغه نه کا    رحمان کړي نوي نوي اجتهاد دي

ستا له لاسه په ما جور دي که داد دي    ځما مراد خو واړه ستا د زړه مراد دي
ستا په مینه کښې ځما له مخه تښتي    که آفتاب دي که آسیب دي که فساد دي
هر اهداد چه را کاوه شي ستا په مینه    په لیمه ځما قبول هغه اهداد دي
که تمام جهان مي پریوزي په لیمه کښې    بې تا نه را څرګندیږي نه مي یاد دي
ما چه غوږ د ستا د عشق په ترانه کړ    نصیحت مي نور د زړه په غوږو یاد دي
اوس ځما له ننګ و نامه سره څه دي    چه دي نوم د عاشقئ را باندي زیاد دي
هر ګلشن چه له ګل رخه بې بهره وي    د عاشق په نظر غولی د صیاد دي
د رحمان و توان ته ګوره همره ناز کړه    څه د اوسپنو روغ نه دي آدم زاد دي

په خاطر باندي مي ستا د غم غبار دي    همیشه مي په زړه پروت انبار انبار دي
رهبري که ګمرهانو ته کړي خضر    عاشقانو لره خضر ستا ریبار دي
ګوندي چرې څوك د خداي په در قبول وي    ستا له لاسه مي فریاد په هر دیار دي
د شهید و پرهارونو ته نظر کړه    هسي رنګ له دواړو سترګو مي خونبار دي
چه د غم په بار ئې زړه دي ځما کښېلي    هم هغه مي په زړه کښېلي په بار بار دي

چه هر دم مي د غمزو په تورو وژنی　　لا مي زړه په هغو سترگو منت بار دي
دا آسمان دي د هغه په مدعا وی　　چه په ما باندي ئې کړي ستا اخبار دي
که یار سل ځله جفا ور سره کاندي　　د رحمان دا هسي کله اعتبار دي

کمیني یو نادرکار دي　　چه کمال ځني اظهار دي
چه اختیار ئې کمیني کړه　　په دانه کښي پټ خروار دي
چرگ په دوه پیسې حلال شي　　باز په سل روپۍ مردار دي
چه آسمان شه سرگردان شه　　چه زمین شه بر قرار دي
نښتر گوره سر کشي کا　　انگور گوره نگونسار دي
ذره خواره شوه آفتاب شوه　　ابر خورب دي غبار دي
کوه بلند شه سیه سنگ شه　　لعل ووړ شه بزرگوار دي
لوي آسمان توره تبۍ شه　　هلك نمر سره انوار دي
ووړ سړی گوره رحمانه　　چه لوي فیل ئې بار بردار دي

دنیا دار که مستغني په سیم و زر دي　　هنرمند و څخه گنج د خپل هنر دي
بیهوده به زور آور و ځان ته وایي　　د دنیا سړي که هر څو زوراور دي
هسي مه وایه چه زه یم په جهان کښي　　پیدا کړي خداي د سر د پاسه سر دي
ځني ځني ئې ولیان پیغمبران کړل　　نه چه هر سړي ولي او پیغمبر دي
جو دانه قدر یو لعل په کښي پیدا شي　　نور جهان واړه د تورو کاڼو غر دي
یو بادشاه وي چه لښکر ور پسې درومي　　نه په هر یوه سړي پسې لښکر دي
پیدا کړي خداي سړی په تفاوت دي　　هسي نه چه جهان واړه برابر دي
که د عمر و رفتن ته څوك نظر کا　　دا به وایي چه آفتاب د نماز دیگر دي
چه ئې سر په زمکه ایښی وي و یار ته　　په آسمان باندي ختلی لکه نمر دي
تعجب څما د ډیرو اوښو مه کړه　　ما موندلي په دا بحر کښي گوهر دي
د یار خرقه ئې خداي مه کړه په غاړه　　رحمان کوږ دستار تړلي قلندر دي

زلفي دي له ډیري درازۍ پاي تر سر دي　　یا د بنفشې لښتي خورې په صنوبر دي
لب دي آب حیات دي یا شکر یا نبات دي　　یا خو زه غلط شوم تر همه واړه بهتر دي
قد ته دي څوك نه شي رسیدي له بلندۍ　　ولي چه معراج وته خاته د پیغمبر دي

ما چه ستا ښايست او نمر سپوږمۍ سره په تول کړه    تللي په ميزان کښې تر آسمانه سپوږمۍ نمر دي
څاڅکي له آسمانه په هر چا ووري يکسانه    پرخه په واښه شي په صدفو کښې گوهر دي
بخت دي چه ئې څوك متمكن كړه په تخت باندي    څوك د غم په خار سره پاره پاره جگر دي
باد چه دي په زلفو باندي قصد د پريشانۍ کړ    ځکه ئې گردونه د جهان واړه په سر دي
هله به سړی شي چه دي نوم عبدالرحمن شي    اوس سړي په څه ئې که دي لوستي زير و زبر دي
سپيني اوښي زيړ رخسار د ميني له دولته    اې رحمانه دا د عاشقانو سيم و زر دي

دواړه سترگې مي کړې د ستا په لور دي    مدام ډوبې د فراق په آب شور دي
کنډولي د دواړو سترگو ستا په طمع    و هر لور ته مي نيولي كور په كور دي
چه مي خيال د ترکو وليده په زړه کښې    دواړه کسي مي و زړه وته نسکور دي
ما قبول د رقيب ناز کړ ستا دپاره    سود و زيان په دا جهان کښې خور او ورور دي
په رحمان باندي دا هسي گمان مه كړه    چه بې تا په نور څه غليږي هغه نور دي

ستا له غمه مي په سر کښې هسي شور دي    گويا ميشت مي په سر ښهر د لاهور دي
په افسون او په جادو د تورو سترگو    خراب زړه مي له جمله عالمه تور دي
که مي زړه له غمه وچوي راته وايي    غم د هجر دغه مه گڼه لا نور دي
د هجران په بيمارۍ کښې را معلوم شه    چه اخيستي مي آزار د پلار و مور دي
دا دنيا په مثال کور شوه د غمونو    چه په هسي کور نازيږی هغه کور دي
دا جهان نه د چا خپل دي نه به خپل شي    چا په خپله رضا پريښود چا په زور دي
چه د مرگ په پورووړيو کښې څوك ومري    دي دواړو پورووړيو زوي او ورور دي
که رحمان په عاشقۍ ملامت کيږم    ما په سترگو قبول کړي دا پيغور دي

که دلدار په دلدارۍ ځما قدم بردي    گويا هر قدم په لاري د حرم بردي
ځاي لري که بې منته بوسه راكړي    كوم كريم په چا منت د خپل کرم بردي
معشوقه شفيقه بويه مهربانه    نه قارون چه په ځان اسم د حاتم بردي
هسي پټ لرم دا زيړ رخسار له خلقو    لکه زر چه څوك له خلقو پټ پنهم بردي
خداي و ما وته گلونه د جنت کړل    که داغونه مي په زړه باندي د غم بردي
هيڅ مانه دي څوك له مستو سترگو نه کا    كوم يو مست دي چه قدم په لاري سم بردي
راحت نه دي بې زحمته چا موندلي    كوم طبيب دي چه په روغ صورت مرهم بردي

زه هر گور تر خپل صنم پوري شرمیږم — برهمن چه سر په پښو د خپل صنم ږدي
و آسمان ته لاس د عقل نه رسیږي — دا خو عشق دي چه په عرش کرسي قدم ږدي
زه رحمان ئې تاج گڼم د یار له لاسه — که مي پنډ په سر د جور و د ستم ږدي

د دنیا کارونه واړه غلول دي — دا گمان په هیچا مه کړه چه مي خپل دي
هیڅ مزه په دا جهان کښې پاتي نه شوه — د یخ سوري په اوبو پوري کول دي
پوزه غوړ د غوښو شته په هر چا پوري — که د شرم پوزه غوړ غواړې باطل دي
که دي دوه کاسې دانې وي په کندو کښې — پس له شامه هسي وایه چه د بل دي
که ته یو یا دوه عیبونه د چا شمار کړې — بل به هسي تا ته وایي چه ستا سل دي
نصیحت د ناصحانو اثر نه کا — د سړې او میني خوشي ټکول دي
دا نا اهل همدمان دي نه پوهیږم — که موچۍ د رحمان پنډۍ په گوگل دي

چه د څنگه مي دلبر په لاس کښې جام دي — نن اورنگ د زمانې ځما غلام دي
مدام کله وي دنیا د دنیا دارو — بې له عشقه چه دولت ئې مستدام دي
د هارون څرخ پاي نیلي دي د سپهر — څو به دوکا چه ئې دو په سر د بام دي
د دنیا چاري په مثل دي د سوري — د آفتاب په مخ د سوري څه مقام دي
که ئې صبح ښایسته ده خنده رویه — بیا ئې هسي په هر صبح پسي شام دي
نه په مهر کښې آرام شته نه په ماه کښې — په دنیا راغلي هر یو بې آرام دي
بې غمي په دنیا چري ده رحمانه — یو بې غم دي څوک را وښیي کدام دي

سپین رخسار و مشکین خال و بله صنم دي — یا محمود و ایاز ناست سره همدم دي
که دي مخ په زلفو پټ شه باک ئې نشته — د حیات اوبه هم پټې په تور تم دي
ستا له زلفو له رخساره له سرو شنډو — پیدا شوي شام شفق و صحبدم دي
په دهن کښې دي غاښونه تجلي کا — یا غوټې په غنچه کښې د شبنم دي
نه چه اوس ځما زړه غوښ ستا په غمزه دي — چاړه غوښې له قدیمه سره په غم دي
بې ژړا چا ته نه گوري سیه چشم — د نرگسو غوړیده د جوي په نم دي
راحت نه دي چا موندلي بې رحمته — ستا جفا و وفا دواړه منقسم دي
ستا د حسن د تعریف له برکته — د رحمان د شعر کوکي په عالم دي

غم دي هسي غلبه شه په ما باندي    چه مي ځاي نه شي دننه نه دباندي
له زګیروو نه مي نور خلق په عذاب شه    تل د وچو له کبله سوزي تاندي
زه د ستا په غم کښي شمعه غوندي ژاړم    ته ځما په غم کښي صبح غوندي خاندې
زړه مي ستا په لوري هسي آویزان دي    لکه زلفي دي په مخ دي آویزاندي
ما دي ستا د اندیښنو په اور کښي سوي    د دنیا اندیښنې واړه لکه سپاندي
دا دستور دي چه لوي غم په سړي ور شي    نور غمونه ئې همه شي تر پښو لاندي
هر چه ما په نصیحت له تا جار باسي    بیا د ستا په لوري درومي له ما وړاندي
سره لنبه ګوره چه څه کا په وچ ډکي    مخ د یار په رحمان هسي چاري کاندي

ما د ستا لمن ته اچولي دا خپل ځان دي    ستا دي ځم نه دي که دانا دي که نادان دي
خپل سرکښي لویي مي همه واړه فراموش شوه    هسي مي زړه ستا دې لوي قامت وته حیران دي
بې له تا که سیر د ګلستان کړم که د ګلو    نه پوهیږم هیڅ چه ګلاستان دي که زندان دي
چا پیراندم زه چه عاشق نه وم په جهان کښي    اوس مي ستا له رویه نوم رسوا په درست جهان دي
ډیر همزولي تیر شوه د مجنون بې نام و نقشه    عشق دي چه عاشق لره هم نام دي هم نشان دي
لوي ترکوم چنجي دي پروا نه چه افسانه شه    واړه په سبب د عاشقۍ نمایان دي
واړه د خپل ځان په نظر ګوره که دانا یې    اي عبدالرحمٰنه درست جهان عبدالرّحمٰن دي

زړه مي ستا په فکر ذکر گلستان دي          تن مي ستا له غمه پاڼه د خزان دي
ستا د هجر په غم هسي بهره مند يم          چه په سترگو کښي مي جوړ رود روان دي
ستا کتو مي عجب زخم په زړه وکړ          چه هم ويني ترې بهيږي هم خندان دي
هسي رنگ مي د خپل زړه له وينو واخيست          چه ځان درست راته په شکل د جانان دي
که د ستا د زلفو مار کاندي خونونه          ما مونډلي ځني عمر جاودان دي
ځکندن که هر څو تلخ و تريخ وايه شي          ستا د لبو په مدد آبحيوان دي
آشنائي تر جدائی کم زورې نده          معطر په بوي د مصر درست کنعان دي
لکه نمر په څلورم آسمان ليده شي          محبت به سل حجابه کښي عيان دي
نور د شمع په فانوس کله پټيږي          عشق د عقل په پرده کښي نمايان دي
که د ستا په مخ کښي بوي د حجاب نشته          زه له ډيري ځلي وايم چه نهان دي
طاؤس رنگ زلفي دي چا هسي کړه کرې          چه هر موي ئې په څو رنگه په څو شان دي
بې پردې به حسن نه وي چا ليدلي          که څوک وايي چه ليده شي تش گمان دي
ښادي غم غوندي آسانه مونده نه شي          سور په خپلو وينو لعل د بدخشان دي
کوه وصال په هر زمان وي هسي دريغه          لکه غم چه د هجران په هر زمان دي
بې د ستا له ملاقاته چه مشکل شه          نور مشکل واړه په ما باندي آسان دي
هم په دا راته آسان شو نور غمونه          چه ستا غم راته د حد په هورته گران دي
يو نفس به دي له دره بيرته نه شم          څو مي يو نفس باقي په دا جهان دي
قافله د صبر هيڅ ويسا پرې نه کا          ستا له غمه مي منزل د زړه ويران دي
که سروسامان ستا د زلفو نشته          هسي زړه ځما بې سر و بې سامان دي
لکه تا چه تور گيسو په مخ پريشان کړ          ځما هسوي خراب زړه پسې پريشان دي
خوار خاطر به د رحمان سلامت څو وي          چه گذر ئې ستا په چاه زنخندان دي

په نامه د هغه خداي مي دا بيان دي          چه يو نوم ئې په نومونو کښي سجان دي
هم بادشاه دي د جمله ؤ بادشاهانو          هم د هر يوه سلطان په سر سلطان دي
هغه کار چه و هر چا وته مشکل وي          هغه کار واړه و ده وته آسان دي
څوک آفتاب شي په آسمان را خيژولي          ده آفتاب را خيژولي په آسمان دي
څوک د نمر په مخ حجاب شي غوړولي          ده پټ کړي نمر په ابر کښي پنهان دي
څوک په شپه کښي شي مهتاب پيدا کولي          ده په شپه کښي پيدا کړي ماه تابان دي
څوک يو څاڅکي پرې يستي شي له اسمانه          نزول کړي ده په مونږ باندي باران دي

څوك شي روح نيستي په يوه ماشي    ژوندي كړي ده په روح تمام جهان دي
څوك و سنگ شي رنگ د گلو ور كولي    ده و سنگ وركړي رنگ د ارغوان دي
څوك له خاورو شي يو گل پيدا كولي    ده له خاورو پيدا كړي گلستان دي
څوك له سنگه شي گوهر پيدا كولي    ده له سنگه پيدا كړي در مرجان دي
څوك شي رزق و هر مخلوق ته رسولي    دی د هر يوه مخلوق روزي رسان دي
څوك بنده لره ايمان شي ور كولي    ده وركړي هر مؤمن لره ايمان دي
څوك له زمكي و آسمان ته شي ختلي    ده عيسیٰ لره وركړي دا مكان دي
څوك له خداي سره خبري شي كولي    ده موسیٰ مشرف كړي په دا شان دي
څوك ايښو دي په توسن د آسمان زين شي    ايښي ده په هوا تخت د سليمان دي
څوك په سپينه ږيره پايي تر قيامته    ده په خضر باندي كړي دا احسان دي
چه په ده شي هغه كار په هيچا نه شي    هر توانا د ده تر توان پوري ناتوان دي
په اوبو كښي ئې د كاڼو گوټ پيدا كړ    ده وركړي په كښ اور لره مكان دي
په سجود ئې زمكي سر دي لگولي    هم ئې زوړند په ركوع سره آسمان دي
هر ونه په قيام ورته ولاړه    هر گياه ئې په تسبيح سره زبان دي
همه واړه په تسبيح د ده مشغول دي    كه ملك دي كه پيري دي كه انسان دي
هر ماهی ئې په درياب كښي حمد وايي    هر مرغه ئې په چمن كښي ثنا خوان دي
حق په حق ئې هيچا نه ده ثنا كړې    نه له هيچا واقع شوي دا بيان دي
مخلوقاتو هسي نه دي پيژاندلي    لكه ده څخه چه قدر د خپل ځان دي
حد پايان ئې هيڅ سړي موندلي نه دي    معرفت ئې هسي بحر بې پايان دي
نه ئې زيان نه ئې زوال نه ئې نقصان شته    دي بې زيانه بې زواله بې نقصان دي
نه ئې مثل نه مثال نه ئې مكان شته    دي بې مثله بې مثاله بې مكان دي
پاك ئې وگڼه بې شكه بې گمانه    له هغه چه د چا شك د چا گمان دي
نه ئې څوك په سترگوويني نه ليده شي    او بې چونه بې چگونه نمايان دي
كه څوك وايي ليده نه شي ليده نه شي    او كه وايي و هر چا وته عيان دي
منزه دي له جمله ؤ جهتونو    او بيا هر جهت په ده باندي ودان دي
له زرگونو صفتونو راشه گوره    چه ئې كړي نيم صفت عبدالرحمٰن دي

ستا د عشق حرفونه تور نه دي گلگون دي    هغه په دا چه نوشته په جگر خون دي
تش به نه شي هغه خم د عشق له ميو    چه ئې خاوري د فرهاد و د مجنون دي

د دنيا چاري همه واړه فاني دي    دا د ستا جور و جفا ولي افزون دي
مقتولان ستا د غمزو دي لاله نه دي    چه په سره کفن له زمکي را بيرون دي
چه ئې هيڅ بها زلميو څخه نشته    جونه نه دي سکه گنجونه د قارون دي
بادشاهان په يوه دم کښي گدايان کا    ما ليدلي فسادونه د گردون دي
د رحمان د زړه خوناب مگر قبول شه    چه مخونه د دلبرو پرې گلگون دي

مخ د يار شمس و قمر درې واړه يو دي    قد و سر و صنوبر درې واړه يو دي
حاجت نه لرم په شهد و په شکرو    لب د يار شهد و شکر درې واړه يو دي
که بې ياره په بستر د پاسه پروت يم    نار و خاوري دا بستر درې واړه يو دي
چه ئې در و هم ديوار وته نظر کړم    باغ بوستان و دغه در درې واړه يو دي
خداي د يار له هجره هيڅوك خبر مه کړه    تاخت و قتل دا خبر درې واړه يو دي
چه غبار ئې د کوڅې را باندي راشي    دا غبار مښك و عنبر درې واړه يو دي
هغه دم چه سړي درومي له جهانه    توري خاوري سيم و زر درې واړه يو دي
قلندر چه په رښتيا قلندري کا    خان سلطان و قلندر درې واړه يو دي
ور دي نه شي په پردئ زمکه هيڅوك    کور و کر و مبصر درې واړه يو دي
چه دي نه په کښي يو يار نه دي آشنا وي    هغه ښهر بحر و بر درې واړه يو دي
په دکان د نابيناؤ جوهريانو    خر مهرې لعل و گوهر درې واړه يو دي
په سبب د ظالمانو حاکمانو    گوواور و پښاور درې واړه يو دي
غزا وشوه که ځان ستائې و رحمان ته    بې هنر و گاؤ و خر درې واړه يو دي

په دنيا کښي که څه کار دي خو د دين دي    د دې کار په کننده ؤ آفرين دي
چه تقوىٰ او ديانت ئې شي په بحره    د هغو د سعادت ستوري قرين دي
قناعت مي هسي خوند په خوله کښي کيښود    چه وچ ټوك مي په دهن کښي انگبين دي
بې هاتيانو بې اوښانو بادشاهي کا    د زاړه پوزي ټوکر کي ئې قالين دي
چه په خواست د حاجت پورته کا لاسونه    د آسمان د مالائکو پرې آمين دي
چه قبوله کهتري کا په دنيا کښي    د هغو په بهترئ باندي يقين دي
تلل د لوړي اوبه درومي و ژور ته    حق تعالىٰ کمال ورکړي و کمين دي
خاکساري د خاکسارانو مرتبه ده    که زړوکي ئې خيرن وي زړه ئې سپين دي
د سرکښو سر که ورشي تر آسمانه    په دوه ورځي پس ئې ځای زير زمين دي

که ښیوه ئې وي په سر کښې او لوئې کا د رحمت لیاقت نه لري لعین دي
که صورت ئې د سړي سړی باله شي په معنی کښې سړی نه دي شیاطین دي
که رحمان څخه متاع د دنیا نشته شکر دا چه نه خودرای و نه خودبین دي

چه دا هسي لاس په لاس دنیا پرېښودي څه چواچندڼ په ځان پوري مښو دي
دا دنیا په مثال پل مرگ ئې سیلاب دي د سیلاب په مخ کښې څه پوله ایښو دي
جل زلمي لا واده نه وي سره گونده شي دا رنگ چاري د مرگي په خرخرښو دي
قافلې چه په دنیا کښې شوې داخلي بیا هم هسي معلومیږي چه د لښو دي
دا سفر به په هغو باندي آسان وي چه تر کوچ پخوا په زیرمه د توښو دي
چه بې وقته ارمان کا په وقت اوده وي د هغو عالمو ږیري د وکښو دي
په هر شان چه یار خوښیږی زه هغه کړم خپلول د صاحبانو په پیښو دي
د یار غم مي لکه تاج دي په سر ایښي نور غمونه مي همه لاندي تر پښو دي
معشوقې په عاشقانو خود پوهیږي دلته څه د عاشقۍ نښي د ښو دي
میخواران که ئې خبر شي له مستۍ نه د رحمان د میخانې شراب د څښو دي

دا ژوندي چه معلومیږي واړه مړه دي که څه دي هم هسي وایه چه څه نه دي
یا د باد په مخ کښې خاوري دي دا توري یا د اور په مخ کښې واړه وچ واښه دي
د خپل عمر شپې او ورځي چه په زړه کړم هسي درومي چه د سیند گویا اوبه دي
غافلان که ویني، اوري به ئې څه کړې دا ئې خوب دي نه لیده نه اوریده دي
چه د خدای له معرفته خبر نه وي هغه واړه که بیدار دي هم اوده دي
د رحمان د زړه له حاله خدای خبر دي چه په زړه کښې ئې د یار له غمه څه دي

زه بلبل ستا د وصال یم بوستان څه دي ستا د وصل په نسبت گلستان څه دي
چه آشنا شي ستا له دره له دیواره انتظار ئې په روضه د رضوان څه دي
چه روزي ئې شهادت شي ستا له تیغه احتیاج ئې په چشمه د حیوان څه دي
چه مسکن ئې د زړه ستا د زلفو خم شي و هغو ته د عطارو دکان څه دي
بلهوس که بوسه غواړي له تا څه شو هر رنگ هر رنگ ویل کاندي نادان څه دي
هر چه لاندي خپل وجود تر خپل قدم کا عرش ئې لاندي تر قدم شي آسمان څه دي
زه چه ستا له غمه ژاړم آه فریاد کړم برق و رعد چکاره دي باران څه دي

ځان جهان هسي ستا په مینه هیر دي	نه پوهیږم چه ځان څه دي جهان څه دي
ته چه نه ګورې و ما ته لږ مي پوه کړه	په دا کار کښي دي ضرر و نقصان څه دي
زه بې صبره یم که مهر د ستا نشته	له دې دواړو دي په زړه کښي ګمان څه دي
که ستا سترګي دي قاتلي زه مقتول یم	وایه نور دي په خاطر کښي ارمان څه دي
چه مي وینې ترو مي څه پښتې له حاله	له عیانه احتیاج د بیان څه دي
هر چه وایې ستا رسئ د رحمان غاړه	و تواناؤ ته حجت د ناتوان څه دي

د عاشق نظر په خورد و په خواب نه دي	مراد ئې بې د یار له دره بل باب نه دي
ته نظر په خپل هنر په عقل مه کړه	دا اسباب په عاشقئ کښي اسباب نه دي
چه د یار سره حساب د دنیا کاندي	دغه هیڅ په عاشقانو حساب نه دي
چه عاشق په عاشقئ کښي ارباب نه شي	که د درست جهان ارباب وي ارباب نه دي
هر چه یار منع کوي له خپله یاره	دا کتاب د عاشقانو کتاب نه دي
دا حجاب چه نور عالم ئې حجاب بویي	دا ځما د یار تر میانه حجاب نه دي
که ثواب دي هم سوئ د یار له مخه	ما ګڼلي دغه کار په ثواب نه دي
که لیدلي زلیخا یوسف په خوب و	ما په ویښه دي لیدلي په خواب نه دي
صبر ونیسه په مخ کښي که مراد غواړې	هیچا کړي دغه کار په شتاب نه دي
رحمان سوال د بوسې کړي دي له یاره	لا ئې هیڅ ځني موندلي ځواب نه دي

هغه یار چه بې وفا دي څه یار نه دي	هغه کار چه بې بقا دي څه کار نه دي
که د سر ښیندل دشوار په ما و تا دي	دا په عشق کښي سهل کار دي دشوار نه دي
اندیښنه سړی بیدار کاندي له خوبه	کم اندیشه که بیدار دي بیدار نه دي
که څه عمر دي عاشق لره وصال دي	د هجران عمر د عمر په شمار نه دي
د چشمانو په ځنبل کښي تیر و بیر شي	اعتبار د زمانې اعتبار نه دي
که د سلو زویو پلار شي به ئې څه کا	بې وقوفه زوي د پلار څه په کار نه دي
معشوقې همیشه ناز په عاشق کاندي	رحمان هیڅ له خپله یاره آزار نه دي

هر نګار چه بې وفا دي نګار نه دي	په ګلزار کښي چه ګل نه وي ګلزار نه دي
په تلخئ د میو مست خلق مي خوښ دي	هغه خار چه بوي د ګل لري خار نه دي
دینداري دنیا داري دي ځبله لري	ما لیدلي هیڅ دیندار دنیادار نه دي

که زوزگار دي په جهان کښي عاشقي ده
د دې نور عالم روزگار څه روزگار نه دي
چه تصدیق ئې په خپل زړه کښي محکم نه وي
دا په خوله ظاهر اقرار څه اقرار نه دي
په هر زړه چه د خپل یار د غم غبار وي
دغه ابر د رحمت دي غبار نه دي
چا به کسب بې له عشقه نور څه نه کړ
باري گنج دي چه هر یو ته آظهار نه دي
معشوقه وفا له هیچا سره نه کا
گڼه کوم یو د دې رخت خریدار نه دي
د خپل یار وصال د خداي په داد مونده شي
دغه کار مي د هیچا په اختیار نه دي
په رحمان باندي منت د معشوقو دي
د بې حسنو معشوقو منت بار نه دي

د عشق زخم څه د زخم په شان نه دي
د بل زخم په څیر سهل و آسان نه دي
عاشقان او معشوقې سره پوهیږي
دغه راز و نور عالم ته عیان نه دي
عاشقي نه ده که گورې حیراني ده
کوم سړی په دغه کار کښي حیران نه دي
یو عاشق دي څوك را وښیي په عشق کښي
چه ئې رود په مخ د اوښو روان نه دي
همره اوښي د عاشق په گریوانووري
ته به وایې چه یو سیند دي گریوان نه دي
دا هجران دي چه ئې مرگ په عاشق گران کړ
که هم ځان ور څخه درومي هیڅ گران نه دي
نور غمونه که په ځان د سړي بد دي
غم د ترکو بد د هیچا په ځان نه دي
د دوزخ د اور که تا وله حده تیر دي
برابر د بیلتانه د نیران نه دي
چه باله شي څوك په عشق کښي کم عقل
دا کم عقل ډیر هوښیار دي نادان نه دي
چه بې یاره زه جهان وته نظر کړم
رحمان وایم چه ویران دي ودان نه دی

عاشقان دي په اور سوي دي که نه دي
ستا د عشق په اور الوي دي که نه دي
زحمتونه د هجران واړه په عشق کښي
تا و ما وته ښولي دي که نه دي
په دنیا کښي خو یو سر و مال ویل شي
دواړه ما په تا بایلوي دي که نه دي
تل د ورځو په لینده د ښو غشي
تا په ما باندي را کښلي دي که نه دي
چه مدام ئې ځما زړه له غمه چوي
توري زلفي دي پیچوي دي که نه دي
راشه وگوره احوال د عاشقانو
مړه د عشق په تیغ کوټلي دي که نه دي
ناصحان چه نصیحت و یار ته کاندي
چري دوي هم مین شوي دي که نه دي
ښائیسته که په ښائیست ملایکه وي
په وکښود زړونو روي دي که نه دي
بلبلان پسي نارې وهي رحمانه
د بهار گلونه شوي دي که نه دي

خښ مي ستا د بڼو غشي په سينه دي    پور راپوري مي وتلي تر اينه دي
تل ئې مخ د يار په مخ باندي وي ايښي    هغه زړونه چه بې زنگه آئينه دي
هسي نه چه زه نن ورځ په تا شيدا يم    ستا غمونه مي په زړه کښي ديرينه دي
لکه ستوري چه بريښنا کا په آسمان کښي    په ټټر مي ستا داغونه نگينه دي
درته وايم چه له آهه ئې پرهيز کا    د هغو چه پوشاکونه پشمينه دي
که دا ستا رخسار سوزاني لنبې نه وي    ولي کسي ځما تور سوي نينه دي
څه به سم په صبحدم گورې و چا ته    چه دي سترگی په مي مستي شبينه دي
هغه سترگي چه پيدا کړې خداي خونريزي    بې غضبه په غضب او په کينه دي
شرابيان چه شراب مومي خو ئې شومي    کله منع په اختر په ادينه دي
چه تمام د خپل ځگر په وينو رنگ شه    د رحمان خبري ځکه رنگينه دي

که مطلب و مدعیٰ د سړي خداي دي    هر هر مړي د ژونديو رهنماي دي
مسافر که په رحلت کښي و بله غېږ کا    هر آواز ئې خواب آلود لره دراي دي
که سړي و حقيقت وته نظر کا    ژوندی خلق واړه ناست د مړو په ځاي دي
دا خو بخت دي څوك ئې سپين و څوك ئې تورکړه    گڼه عين لکه زاغ هسي هماي دي
لکه فرق چه د هماي و د زاغ نشته    هم دغه دليل د شاه و د گداي دي
ته نظر د کاري گرو په کار مه کړه    کار همه واړه موقوف په کار فرماي دي
سالکان چه د جهان تماشا کاندي    له جهانه ئې مطلب جهان آراي دي
که څوك خپل دست و پاي وباسي له ميانه    خداي پخپله د بې دستو دست و پاي دي
په هغه جهان نيکي و بدي نشته    هر مطلب د طالبانو په دا سراي دي
زه رحمان يوازي نه يم په دا کار کښي    هميشه د يار په يار پسې واي واي دي

په ظاهر صورت چه ستا د در گداي دي    په معنیٰ کښي د جمله ؤ کد خداي دي
مجنون بيد غوندي رونق د گلستان شي    چه ئې ستا له غمه سريه پشت پاي دي
چه له غمه دي حرس غوندي نالان دي    د جمله ؤ گمرهانو رهنماي دي
چه څوك زړه د ستا و تورو سترگو ورکا    ستا د ورځو تور محراب د لاندي ځاي دي
چه مسکن ئې د زړه ستا د زلفو خم شي    د هغو ناستي په سوري د هماي دي
چه تا ويني و ما ته نصيحت کا    شك پرې مه کوه بې شکه چه خود راي دي
که زر دار دي اشنايان د زر دارانو    د رحمان د آشنايانو تکيه خداي دي

که د خلقو و نظر ته آدمي دي / خوار عاشق د معشوقې د کوڅې سپی دي
هر چه ځان یار په سپیو کښې داخل کا / ترو هاله به ورته وایم چه سړی دي
ما دي خداي د یار له غمه بې غم نه کا / دا په ملك د عاشقۍ کښې لوي ورانی دي
زه د یار په غم کښې زیړه څهره خوښ یم / دا ځما خزان خزان نه دي پسرلی دي
زه ژوندون د یار و وصل وته وایم / گڼه هر یو دوزخي په ژوند ژوندی دي
ته چه ما منع کوې د یار له دره / کوم یو در د یار له دره بریالی دي
زه د یار میني په یار باندي شیدا کړم / که څوك ما گڼي زه نه یم واړه دی دي
چه وحشي مجنون ئې ښهر لره راووست / د لیلې د زلفو هسي غړوندی دي
زر داران که اوبه څښي په جام د زرو / ځما خوښ دا خپل د خاورو کنډولی دي
اورنگ زیب که د ډهلی په تخت نازیږي / خپله خونه هر گداي لره ډهلی دي
چه له خپله کوره ووزي مسافر شي / څوك ئې پیژني ساهو دي که مریی دي
چه ئې خاوري شي له خاورو سره گډیږي / ترو د چا زده چه کوم نیکه نمسی دي
توره شپه په آشنایانو روڼا ورځ ده / روڼا ورځ په نا اشناؤ تور وږمی دي
نه دي سترگې پوزه غوږ د کم شناختو / په معنیٰ کښې یو دیوال سوری سوری دي
عاشقان ئې د دنیا له غمه خلاص کړه / عاشقي د سلیمان بادشاه غمی دي
هر چه حب د عاشقي لره په زړه کښې / که په قطع صد ساله وي هم زلمی دي
دا هلال دي چه لیده شي په شفق کښې / که په لاس د گل اندامي سپین وښی دي
نا آشنا به بهره څه رنگ ځني مومي / چه مدام ئې په آشنا پسې غورزی دي
څربوې مي قربانۍ لره پوهیږم / دا چه کړي دي په ما باندي زړه سوی دي
چه په نوم باندي باله شي لیده نه شي / معلومیږي چه نر حوریا ښاپیری دي
چه د خط په دود ئې خلق په کښې پریوزي / زنخدان ئې تر سبزي لاندي کوهی دي
زه رحمان له یاره خوښ یم که جفا کا / که جفا نه کا وفا کا څو تیری دي

عاشقۍ را باندي سوري کړې مرۍ / هیڅ مي نه درومي بې یاره تر مرمۍ
څه اثر به ئې د عق وي په ر کښې / د هغو په سر چه کښیني ښاپیرۍ
د مژگانو په پنجه مي زړه وکاږي / خداي د ترکو مستي سترگې کړې زمرۍ
غلوفه به ئې بې غمه نور څه نه وي / هر چه کاندي د خوبانو چاکرۍ
لږ د صبر سبق ما لره هم راکړي / که په عشق کښې څوك دغه طاقت لرۍ
خدانه څه دي د کوتوال په لاس کښې ور کړم / چه شپه ورځ مي غږوي لکه تورۍ

په صورت مي نرۍ تبه شوه ولاړه    تا چه دواړه سترګي توري کړي نرۍ
د وصال دلالان کوم طرف ته غواړم    چه بندي شوم د هجران په کچرۍ
نور د شمع په فانوس کله پټيږي    تا چه واغوستې د خيال جامې نرۍ
زه رحمان په زړه نري کړم هغو جونو    چه ئې ملا وي د ويښته په دود نرۍ

چا چه کړي و دنيا وته اسرې دي    د هغو په سر همه خاوري ايرې دي
نادان که د دنيا په کار نازيږي    و دانا وته دا وشتي مسخرې دي
چه بې خدايه محبت کا هغه خلق    نارينه ئې واړه خره او ښځې خرې دي
و سپين ږيريو وته مه وايه سپين ږيري    همګي واړه طفلان د ګوارې دي
هسي وايه چه څړۍ دي د زنانو    که ئې اېښي په دستار کښې قرقرې دي
چه نه فيض نه څه بهره ځني مونده شي    همګي واړه بې فيض و بې بهرې دي
زخيره د دنيا مه کوه رحمانه    دا همه واړه د خاورو ذخيرې دي

ستا له غمه مي په مخ باندي ولې دي    لړ مي ويوښته له حاله چه ولې دي
زه په تا پسي موسی يم قارون نه يم    چه مطلب مي غواوغيلي يا ګلې دي
هغه کوډي لکه تا دي په ما کړي    کله کړي په مجنون باندي ليلې دي
لکه ما چه مصلې در پسي لنګ کړې    کوم ملنګ هسي لنګ کړي مصلې دي
بوي هم ستا د وفا نه دي را الوتي    ما پخپله خپلي کړي تسلې دي
نصيحت اثر په زړه د عاشق نه کا    ګوندي يادي ځما ډيري مسئلې دي
که رحمان د عاشقۍ په تيخ شهيد شي    د جنت حوري همه واړه دلې دي

ته په هره ګړۍ غم د سيم و زر خورې    زه دي هره ګړۍ وينم چه خپل سر خورې
عاقبت به دي يو خنډ له سينې ووزي    ته چه تل په هر يو ښاخ باندي نمر خورې
په عوض ئې کوم طاعت کړې راته وايه    دا نعمت چه په هر شام و هر سحر خورې
روژتي په څلورم پهر افطار کا    ته څلور ځله طعام په هر پهر خورې
که يو ځله تر کماله ورسيږې    نور به غوښې د خپل ځان لکه قمر خورې
که ښيښه د نام و ننګ دي شي تر څنګه    د هر چا په کجروۍ به خپل ځګر خورې
بې هنر وله قند هم زهر قاتل دي    قند ئې وګڼه که زهر په هنر خورې
نهال په زړه د صبر نخل کړه رحمانه    چه مدام د بر خوردار و په څير بر خورې

که له تا ئې شرم نه کیدي مهرۍ     مخ به پټ نه و د حوري د پرۍ
چۀ آفتاب دي تر رخسار پوري خجل شه     له دې ویري زیست په شپه کا قمرۍ
ستا تر حسنه پوري حسن واړه هیڅ دي     نیست په څه له هسنو کا برابرۍ
بې د ستا د تورو سترګو جادوګر و     کوم آهو د بیابان زده وي دم ګرۍ
ستا د عشق د توري هستي رنګ ګذار دي     چه له مخه ئې حباب وي ککرۍ
دلبري او دل جویي لکه د ستا زده     چا زده هسي دل جویۍ او دلبرۍ
حسن واړه د عاشق په عشق موقوف دي     معشوقه که فرشته وي که چورۍ
و عاشق ته د یار غم واړه ښادي ده     د رضا په ملك کښي نشته دلګیرۍ
دا دستور دي چه له درده زګیر وخیژي     ګڼه څه وو د رحمان له شاعرۍ

ستا د تورو سترګو په یاداشت مي اوښي ووری     حق دي که پریوزي په شبرات د غم کښي ستوري
زلفي دي سایه کړي مخ دي اور په جهان بل کړ     هر چا ته چه ګورم نیم په نمر وي نیم په سیوري
څوك دي په وصال کښي قند نبات څوك ځګر خون خوري     چا وکړ دیدن د چا شو سپین د سترګو توري
اور ستا د رخسار دي ما په خپلو اوښو بل کړ     تل په آتش سوزي آئینه چي نمر ته ګوري
سترګي مي د ستا له خیاله پریوتې و زړه ته     څه شو که مو بې سترګو صورت ځي په بل لوري
کله رقیبانو ته نظر کړې کله ما ته     ستا باران د مهر په ښو بدو یو شان ووري
ځان په مستو سترګو باندي مه غلوه رحمانه     دا مستان هوښیار دي له حکمته سره ښوري

غم خواري دا هسي چري وي غم خورې     چه به ما دلته کښي ناست لرې ته دورې
هغه خداي چه ئې ستا مخ بله لنبه کړ     دا لنبه ئې کړه ځما په ګوګل پورې
هم هغه دی ځما تور لیمه سره کړي     چه ئې ستا لاسونه سره کړه سترګي تورې
غل خو غلا د سرو مال په توره شپه کا     ته په ورځ ځما د سرود مال چورې
اصیل نه دي چاپیرو دي نه پلورلي     ته اصیل په دیدین پیري هم ئې پلورې
دا کوم رنګ د آشنائي او د ورورۍ دي     چه زه ستا د مخ ثنا کړم ته مي زورې
درخانۍ په سل غمونو خداي اخته کړه     زه به ولي له تا زار کوم که ګورې
زه و تا ته د ستا له جوره ژاړم     ته را واخلې سل ګلې نادري نورې
د رحمان په عاشقۍ به آفرین کړې     که لږ مخ په آئینه کړې ځان وګورې

په هر ځاي چه ستا ثنا شي ښيوه گړي — خر مهرې شي هلته دُر و مرغلري
د هغو سترگو به اوښي وي گلرنگي — هر چه ستا په گل رخسار وي منتظري
هغه کله د ناصح خبري اوري — هر چه اوري ستا خوږې خوږې خبري
مرور کاندي عاشق له جمله خلقو — معشوقې له هيچا مه شه مروري
په ساعت کښي سړي مړ کا هم ژوندي کا — طايفې دي د خوبانو سحر گري
زه ځان ډوب گڼم بې تا په خپلو وينو — که مي ډوب کا څوك په شهدو په شکري
لري لري غم دي واړه را نزدې کړ — چه له مخه دي حجاب کړ راته لري
چه مي نوم د ستا د زلفو په خوله واخيست — را پسې شوې د بلا توري لښکري
هيڅ په حق د حقدارانو نه گروهيږې — هميشه ځما د زړه په وړو منکري
ځما ستا مينه ښرگنده په جهان ده — ولي دا رنگه څرگنده گواهي نغري
زه چه ستا له غمه ژاړمه آه فرياد کړم — د رقيب کره هم ډول وي هم سندري
د رحمان شعر به ولي نادر نه وي — چه ثنا کاندي د تا غوندي نادري

تر ابدي ورځي پوري به جفا کړې — که به مهر وفا هم چري پيدا کړې
معشوقې کله وفا کله جفا کا — مي بايد چه کله هغه کله دا کړې
ما ستا خوي دي وهر چا وته ستايلي — چري نه چه دروغژن مي تر هر چا کړې
چه د ستا دغه خصلت دي ځما اوښي — دا پټ راز به مي په درست جهان رسوا کړې
ستا څه لاس را باندي نه رسي دلبره؟ — چه په لاس د رقيبانو مي سزا کړې
مرم په دا چه د اغيار په رضا درومې — نه په دا چه ته په ځان خپله رضا کړې
په درست عمر به هيچا ليدلي نه وي — هغه چاري چه ته هر ساعت په ما کړې
ما رنځور په کټ کښي پريږدې چه کړيږم — ته لا گرزې د رقيب سره خندا کړې
لاس تر غاړه د رقيب سره خندا کړې — چه ما ووينې له قصده راته شا کړې
هر بيگاه وايې سبا له به خوله درکړم — دا بيگاه به په رحمان کله سبا کړې

په پيرئ کښي چه هوس د مي ناب کړې — بيهوده گمان په صبح د مهتاب کړې
بې طاعته عنايت له خدايه غواړې — د عتاب په ځاي اميد د ثواب کړې
دانسته گناه کوې توبې وکاږې — لکه بت هسي په غڅو سترگو خواب کړې
پۀ هغو غوږو چه ذکر د خداي اورې — بيا سماع په هغو غوږو د رباب کړې
په هغو شونډو چه حمد و ثنا وايې — هم هغه شونډې بيا ډوبې په شراب کړې
علم وکړې هيڅ عمل ور باندي نه کړې — لکه طفل هسي لوبې په کتاب کړې

په شپه پروت يې د مغان په ميخانه کښې　　او د ورځې مخ په لوري د محراب کړې
تمام عمر د دنيا په طلب کرزې　　بيا د خداي په طالبانو ځان حساب کړې
له خالقه دي نه شرم نه حجاب وي　　له رحمانه گوښه ونيسې حجاب کړې

که نظر په ماتو گوډو د روزگار کړې　　همره نه دي چې حساب يا به ئې شمار کړې
په هر غم کښې خاموش اوسه او که نه وي　　د بد خواه خاطر به ښاد دوست به آزار کړې
صبر ونيسه په مخ کښې که مراد غواړې　　په تلوار به هيڅ و نه کړې که تلوار کړې
رضا پاسله و قضا ته فراغت شه　　او که نور څه نور څه وايې ځان به خوار کړې
آرادي او کاروبار دي سره لري　　لاس له کاروباره وکاږه که کار کړې
چه پخپله ئې فاني بولې رحمانه　　ترو بيا څه په هغو چارو اعتبار کړې

چه مدام د بل و عيب وته نظر کړې　　خداي له خپله عيبه ولې نا خبر کړې
که يوه جو دانه عيب وينې په بل کښې　　هغه يو جو دانه عيب به ئې لوي غر کړې
که دي خپله گناه لويه لکه غر وي　　په حيله حيله به غر د مچ وزر کړې
که څوك تله د انصاف درته په لاس کا　　خپل تټو او د بل آس به برابر کړې
تو لعنت دي په دا هسي منصفۍ شه　　چه له حقه و باطل وته گذر کړې
خداي و تا د ملائکو مقام درکړ　　ته دا خپل صورت پخپله گاو و خر کړې
که دي يو ويښته د ځان د پاسه کوږ شي　　ځان هغه ساعت له خدايه مرور کړې
که ښندلي دي په خداي وي يو کيکوړي　　نمايان ئې په جهان کښې لکه نمر کړې
لکه څوك تر مکې لاړ شي بيا ترې راشي　　د دنيا دپاره هسي لوي سفر کړې
که يوه رتۍ دي زر به لاس کښې کښيوزي　　خرڅ خروار د عبادت په رتۍ زر کړې
د ځوانۍ عمر دي تير کړ په غفلت کښې　　په پيرۍ کښې به څه زيرمه د محشر کړې
په دنيا پسي دي نمري دي رنگ کړې　　ځان و خلقو ته درويش و قلندر کړې
لکه وار چه د زړې لولۍ تير شي　　اوس توبې له ضرورته په سپين سر کړې
په پيرۍ کښې د ځواني چاري نه شي　　ته په ورځ د عاشورې به څه اختر کړې
لکه بيخ د زړې وني چنجي وخوري　　په دا تير عمر به څه ښاخ و ثمر کړې
دغه باغ به دي خلاص نه شي له خزانه　　که چاپير ورځني سد د سکندر کړې
و بد خواه وته څوك نصيحت نه کا　　رحمان ستا په غم شريك دي که باور کړې

خدایه مه کړه نا امید هغه وګړي چه امید ئي وي د ستا په کرم کړي
ستا له رحمه به زړه ولي نومیدي کړم چه دي ځان دي د رحیم په نام نومړي
دا نیمګړي سړي ننګ هم د خپل نام کا ته خو خداي یې چه په هیڅ نه یې نیم ګړي
هیڅ بنده دي په بزرګي کښي لیده نه شي څو تا خط د آزادۍ نه دي ورکړي
دا همه واړه شومیت دي د شومانو ګنه ته د چا په زیرمه نه یې ستړي
چه بې تا ئې په زره بله سودا ګرزي تر مقصوده به و نه رسي وګړي
هر چه ستا په لار قدم د راستي کیږدي که ئې زیان وي زه رحمان ئې پوروړي

د آشنا له لاسه ناست یم په زړه ستړي په فلوس مي پکار نه دي د رخت وګړي
چه په ژوند ئې طمع پویکړي شي له ژونده نور به څه باندي ویریږي سر پرې کړي
که ژوندون د عاشقانو په وصال وي زه مهجور یم په دغه روایت مړي
خوږ ژوندون مي جدایۍ هسي را تریخ کړ چه د غم له تلخۍ دم نه شم را نغړي
دا صورت په مثال خس محبت اور شه ترو د اور په مخ کښي څه کاندي خسړي
لا علاج به لکه اوښ بار برداري کا چه په پوزه ئې پیزوان شه د عشق پړي
له احواله ئې ورو ورو پوښتۍ یارانو بیلتانه د رحمان وار دي خطا کړي

ما په تا پسې دا سپیني جامې رنګ کړې ته لا بیا په ما ګمان د نام و ننګ کړې
هیڅ اثر دي په سنګین خاطر و نه شه که هر څو مي مصلې در پسي لنګ کړې
دل سوزي به دي په نور وکړي څه شي چه له ما غوندي مخلصه سره جنګ کړې
ته په عشق کښي ما هاله دروغژن بوله که یو بل هم هسي ما غوندي ملنګ کړې
دا نارې سورې په عشق کښي دي غمازي ګنه تل به د بلبل په څیر پتنګ کړې
عاشقي و معشوقې ته سپینه لار ده ته و ما وته دا سپینه لار ګړنګ کړې
چه یو دم مي له نظره ته یو خوا شې دا جهان لکه لحد را باندي تنګ کړې
په ښه خوي سره د خلقو افسانه یې خداي څما له کم بخته په زړه سنګ کړې
دا دي څوك له څنګه ناست دي نه پوهیږم چه خبري د رحمان سره په جنګ کړې

خدایه زړه د رقیب نرم په احسان کړې ما له یاره یار له ما سره یك سان کړې
هغه درد چه د اشنا د بیلتانه دي دفع و رفع ئې د وصل په درمان کړې
غم د هجر چه تیري تر اوره سخت دي له دې غمه مي په امن په امان کړې

کار و بار د عاشقۍ چه ډیر مشکل دي    دا مشکل ځما په ما باندي آسان کړې
حجاب لري کړه ځما د یار له میانه    بې حجابه مخ د یار راته عیان کړې
که مطلب د نور چا نوري مرتبې دي    ما گدا په آستانه د خپل جانان کړې
که دا نور عالم و بله خوا ته گوري    ما په لوري د دلبرو نگران کړې
زه چه یار لره ورځم په هغې لاري    مهتر خضر مهتر الیاس مي رهبران کړې
تاریکي د معصیت را څخه واخلې    د طاعت په روښنایۍ مو زړه روښان کړې
چه ځما په پریشانۍ ئې زړه ښه کیږي    زړه ئې ما غوندي په یار پسي پریشان کړې
چه ځما په چمن راشي گستاخي کړي    د شبنم په څیر ئې عمر یو زمان کړې
چه آخاده د منکر تر سره پریوزي    د فلك په څیر مي توره د زبان کړې
هغه عشق چه د ترکو د غمزو دي    هر کلام مي د هغه غشي پیکان کړې
چه کشور د افغانانو معطر شي    د هر بیت مصراع مي زلفي د خوبان کړې
چه هر حرف ئې د نافې هسي خوشبو وي    برکت مي په جزدان په قلمدان کړې
ته چه ما منع کوې د یار له لوري    کاشکي باد د سحر منع په بوستان کړې
نه به ما منع کړې ته له خپله یاره    نه به کوز په زمکه ستوري د آسمان کړې
الّهی د خپل حبیب له برکته    دا ساده انشا رنگینه د رحمان کړې

تا چه مخ د پرۍ سترگي د آهو کړې    نه پوهیږم چه آهو يې که جادو کړې
دعاگو چه د چا ومري څه ښادي ده    ته په څه ځما و مرگ وته آرزو کړې
په محراب د عاشقانو کاڼې ووري    ته چه چین د جبین غوټه په ابرو کړې
تا چه رنگ د گلو واخیست زه پوهیږم    زرغونه به په چهره ځما کنگو کړې
ستا له ډیره ډیره جوره معلومیږي    چه به ما پخپلو اوښو کښې لاهو کړې
که یو ځله توري زلفي کړې پریشاني    خاکستر به په چمن کښې کشمالو کړې
درست جهان به قاف تر قافه معطر شي    که یو ځله شا نه گڼه په گیسو کړې
ستا د زلفو مار خوړلي به روغ نه شي    که افسون د مسیحا ورباندي پو کړې
لاس و پښې دي بې زیوره ښایسته دي    څه منت به د پایلو د باهو کړې
له سوزن د ښو راوړې تار د زلفو    د رحمان د زړگي زخم به رفو کړې

که د عشق شکري تیري تر گلو کړې    نور لذت به لکه زهر هسي تو کړې
که دي وشي ملاقات له سر و قدو    د فاختې په څیر به کوکي په کوکو کړې

عاشقي به تيره توره در په لاس کا     نور د صبر د سکون په ملك به هو کړي
په انصاف و عدالت به نوشيروان شي     هر عمل چه د خپل ځان په ترازو کړي
د سکندر په څير جهان به دي روزي شي     که سرکوز په آئينه د خپل زانو کړي
تريخ لوګي به دي د قند په څير نغړده شي     که صورت د عشق په اور کښي تماکو کړي
وبه نه وينې د ترکو برندي سترګي     مګر ځان په خپلو وينو کښي سالو کړي
روغ به نه شې بې ديار له ښه ديدنه     که سل پنده سپيلني و ځان ته لو کړي
د غفلت ليچن ليمه به دي بينا شي     که د يار د کوڅې خاوري دي څښنکو کړي
دا دارو بد دوائي کوې طبيبه     چه د يار په درد و غم کښي مي دارو کړي
نصيحت په عاشقانو اثر نه کا     دا محنت واړه بې ځايه بې قابو کړي
په رحمان باندي بې ياره خواب حرام دي     که ئې سل بالښته لاندي تر پهلو کړي

ولي ولي و عاشق ته نظر نه کړي     دا ګدا په ديدن ولي توانګر نه کړي
ستا دې ډيري حيا ډير کورونه وران کړل     چه هيچا وته کاته برابر نه کړي
ستا په ډير حسن مي دا عقيده نه شي     چه دا روغ وګړي واړه اوتر نه کړي
ته پلو له مخه واخله زه ضامن يم     که اورنګ د زمانې قلندر نه کړي
ځما هر زمان هر دم په تا ګذر وي     ته يو دم ځما په لوري ګذر نه کړي
لکه ته چه دلاور ځما په مرګ يې     چه دا رنګ چري رقيب دلاور نه کړي
زه د ستا په جفا خوښ يم تل تر تله     که غماز مي له دې رازه خبر نه کړي
ګذشته جفا دي واړه آواره وي     که دا جور و جفا بار ديګر نه کړي
هغه څوك دي چه به ستا له دره درومي     که ئې ته له خپله دره بدر نه کړي
سنګدلي ده هغه خلقو لره ختمه     چه ئې ته په مجلس ورشې اثر نه کړي
رحمان ستا ميني رسوا کړ باري حيف دي     چه ته هيڅ په دا خبره باور نه کړي

و خوبانو وته ولي نظر نه کړي     د چمن په ګلو ولي ګذر نه کړي
دا بهار چه درست جهان ئې معطر کړ     دماغ ولي په دا بوي معطر نه کړي
رضا ولي په قصا سپارلي نه شي     دغه زهر په ځان ولي شکر نه کړي
جك زده چه په نارو د مرګ خبريږي     ځان پخوا تر مرګه ولي خبر نه کړي
چه د نور خلقو په سر اچوې خاوري     ته پخپله خاوري ولي په سر نه کړي

پس له مرگه چه بیا مرې له لوړي تندي     ولي نن ساعت توښه د محشر نه کړې
دا ویل دي اثر کله کا په نورو     اې رحمانه په ځان ولي اثر نه کړې

نمر سپوږمي که ستا له حسنه نه شرمیږي     ترو دوي ولي زرغونه و زیړ ښکاریږي
دا سبوږمۍ چه ئې نه سر شته نه ئې پښې شته     په کوم حسن به له تا سره سمیږي
زړه مي یووړ ستا د مخ په روڼا زلفو     باري غل په سپین سبا کله پټیږي
ستا د زلفو د ابریو له وحشته     همگي لړم ماران دي چه وریږي
مخ دي اور خط دي سبزه ده زه حیران یم     چه سبزه په اور کښې څنگه زرغونیږي
اور اوبه سره چا گډ لیدلي نه دي     دا قدرت دي ستا په لبو کښې نمائیږي
لکه لوند زړوکي تا وکړي نو ئې ووزي     ستا له غمه مي رنگ زیړ پوست مي وچیږي
سپوږمۍ هم دا هسي تاو خوري ستا له مخه     چه په هره میاشت کښې دوه دوه نیمه کیږي
ستا قامت که څوک شمشاد بولي غلط دي     د لرگیو په نرخ سپین زر نه یافتیږي
خم ابرو ئې په پناه د زلفو تم شو     د لړم لشه له مار سره تاویږي
و سپین غاښو ته دي در ویلي نه شم     کاڼي کله د بریښنا په دود ځلیږي
باریك خط ئې زلفو لاندي کړ رحمانه     مورچگان د شپې له مخه پایمالیږي

صبحدم چه هغه یار را باندي راشي     عجب نمر د نمر د پاسه هویدا شي
ښکلي مخ لره حاجت د سنگار نشته     بې ترتیبه چه نمر وخیژي روڼا شي
چه ئې وینم له ورایه پوري نښلم     لکه پیښ چه و بله کاه و کهربا شي
ما له ډیري ناچارۍ و یار ته شا کړه     ناروا د ضرورت په ځاي روا شي
زه په وصل کښې خواري د هجران ژاړم     د هر کار فکر تر کاره لا پخوا شي
لا پخوا تر جدایۍ نه ژړا بویه     گڼه هلته هر یو ژاړي چه جدا شي
وصال نه دي چا په سرومال موندلي     مگر غاړه په دا کار د چا ادا شي
زه به سرومال د یار تر نامي ځار کړم     دا په عشق کښې سهل کار دي که په دا شي
د رحمان په اوښو هسي رنگ پوهیږم     چه آخر به په تمام جهان رسوا شي

تبسم مي د وگړي په روزگار شي     چه له مرگه ئې نه ویره نه ئې ډار شي
له ده وزیږي د ده دواړاندي ومري     لا ئې مینه د دنیا په کار و بار شي
که ئې هر قدم د مړیو په سر لار وي     یو قدم هسي وا نه خلي چه په لار شي

د ژونديو نصيحت پرې اثر نه کا — مگر مړه له قبره پاخي په گفتار شي
د اميد مزي ئې هسي رنگ دراز وي — چه تر خضره ورته خپل عمر بسيار شي
سپينه برېره په اوښي کښي زوي را واخلي — چه به ما لره سپاهي و منصبدار شي
د خرما زړي نهال کا ورته گوري — چه دا سوري دا ميوه به مي پکار شي
هر هر فصل چه ترې ريبي هوسيږي — چه به کانده راته بل فصل تيار شي
لا ئې لېه تخم هم نه وي کرلي — ناکشته ور ځني طمع د خروار شي
غړوندي د ناز کړيو خسيو غړي — چه سبا بيگاه به ما لره گوهار شي
لکه وړکي کټوري له زانې غواړي — په دا هسي پوچ گوئي اعتبار شي
رحمان څه دي چه به پند و جا ته وايي — هدايت د هر بنده په کردگار شي

کر د گلو کره چه سيمه دي گلزار شي — اغزي مه کره په پښو کښي به دي خار شي
ته چه بل په غشيو ولې هسي پوه شه — چه هم دا غشي به ستا په لور گذار شي
کوهي مه کنه د بل سړي په لار کښي — چري ستا به د کوهی په غاړه لار شي
ته چه هر چا ته په خوارو سترگو گوري — لا وړنبي به ستا صورت تر خاورو خوار شي
آدم زاد په معنیٰ واړه يو صورت دي — هر چه بل آزاروي هغه آزار شي
که ته نه کوې نظر د چا و عيب ته — هر سړي به ستا د عيبو پرده دار شي
دهقان کر په لوړه زمکه باندي نه کا — سرکوزي کوه چه بڼ دي مرغزار شي
د مات لوښي آواز کله ثابت خيژي — د هر چا عمل ځرگند په خپل گفتار شي
نن چه صبح ده روښانه لار صحيح کړه — ناگهانه به دا صبحه شب تار شي
لږ ئې مه گڼه که هر څو گناه لږ وي — چه لږ لږ و بله جمع کړې بسيار شي
که بل بد کاندي ته ښه ور سره وکړه — هر يو نخل چه ميوه لري سنگ سار شي
تل و ښو وته آزار د بد ورسي — هر چنجي و نرم چوب ته ورد و خار شي
هغه زړه به له طوفانه په امان وي — چه کشتي غوندي د خلقو باد باردار شي
خداي دي بد له لاسه نه کا او که وي هم — د رحمان دي له کل بدو استغفار شي

هر وگړي چه منصور غوندي په دار شي — دار ئې بس له مرگه نخل ميوه دار شي
روغ صورت که روغ عالم لره کمال دي — ليوني لره کمال دي چه سنگسار شي
هر گياه چه و کمال ته ورسيږي — سر ئې زمکي وته گوز وي نگونسار شي
نري باد به ئې په خپل منزل داخل کا — که څوك پاڼه د خزان غوندي طيار شي

غفلت هيڅ مناسب نه دي د سپين ږيريو — صحبدم که حيوانات دي هم بيدار شي
چه يو موتي ايرې تار په آئينه کا — هم په دا خبره فخر د خاکسار شي
کريمانو سود مونډلي دي په زيان کښې — لکه ښاخ دوني وتراشي بار دار شي
خزانه په سخاوت سره زياتيږي — د کوهي اوبه چه وکاږي بسيار شي
مړول د وږي ګيډې مشکل نه دي — مړول د وږيو سترګو مشکل کار شي
کم خوراك سړي نزدې شي فرښتو ته — هر سړي چه بسيار خوار شي بسيار خوار شي
صاف دلانو لره لږ نصيحت بس دي — د ګوهرو پيوستون په نري تار شي
غلبه د عشق بهانه د حسن غواړي — توره شپه په عاشق زلفي د خپل يار شي
د توفيق له مخه هر مشکل آسان دي — وستۍ وته د اور لنبې ګلزار شي
ناز د عشق پرورش مومي له عشقه — هسي نه چه د خوبانو په سنګار شي
بې محنته چا راحت مونډلي نه دي — د وصال خوښي د هجر په مقدار شي
عاشقانو لره واړه سعادت دي — که ئې سر و مال د يار تر نامې ځار شي
ياره ياره هر څوك وايي په جهان کښي — زه به پس له مرګه وايم چه يار يار شي
لکه ډار کاندي ورغومي له ګرګانو — هسي رنګ له جدايۍ نه ځما ډار شي
د رحمان دا پوچ ګويي څه په کا نه ده — عاشقي په ګفتار نه شي په کردار شي

چه شهيد د تورو سترګو په خنجر شي — خوشنودي ئې د سرو شونډو په کوثر شي
چه را ياد ئې سپين رخسار دراز مژګان کړم — هغه دم مي زړه سپند سينه مجمر شي
عندليب خاطر مي الوزي په ګلو — که د ترکو سنبل زلفي ئې سهپر شي
که يار سل ځله جفا را سره کاندي — ځما کله په جفا د يار باور شي
د ناصح په نصيحت به منع نه شم — که هزار ځله مي ورور و برادر شي
د رقيب او ځما صلح سره نشته — که مو چري لاس و دست و بله بر شي
صبوري او قراري له ما خطا دي — تر هغه ساعته پوري چه محشر شي
تير ساعت به د هيچا په لاس کښې نه وري — مګر تللي آشنا بيا په آشنا ور شي
خوبرويان به د سپوږمۍ ټوکړه را وخلي — که رحمان کچکول په لاس کښي قلندر شي

چه غبار د ستا د لاري په خوا ورشي — که په دواړو سترګو ړوند وي مصر شي
تازه نوي سر پيدا کړي لکه شمعه — چه ئې غوڅ د ستا په مينه د زړه سر شي
چه کيميا د قناعت ئې په لاس کښيوزي — که ګدا وي د قارون په څير توانګر شي

ستا د در گدايان واړه بادشاهان دي     خو چه ستا له دره ووزي در په در شي
تل ئې مخ وي له عالم جار وتلي     د هغو چه ستا په مخ باندي نظر شي
که د درست جهان له حاله خبر دار وي     چه تا ويني له واړو نا خبر شي
ائينه که د جمال کړې ور څرگنده     دا گدا رحمان به شاه سکندر شي

که د مي غم د درست جهان تر زړه چا تير شي     دلگير مه شه هسي وايه چه به تير شي
غم هغه دي هر چه څيرمه وي و چا ته     وړنبي واړه تر وروسته پوري هير شي
بې له خدايه چه مدام په يوه حال وي     بنده کله شيرشاهۍ وي کله سير شي
يو آدم دي چه په څو رنگه جلوه کا     يو رقم دي کله زور و کله زير شي
د دنيا چاري مدام په قرار نه وي     د بڼو په څنبول په بل بل پير شي
په لږ عمر کښي ډير غم له کومه راغي     خوله خپلي بې صبرۍ په سړي ډير شي
خريدار و فروشنده چه سره خوښ شي     به سودا کښي سختي نه کا تير و بير شي
ښايسته په جهان ډير دي بې حسابه     باري څوك به د رحمان د يار په څير شي

که د سرو زرو سړي وي خو چه مړ شي     نه ئې نوم په خوله څوك اخلي نه نومړ شي
که هيڅا پړکړي نه وي په جهان کښي     و اجل ته لکه خر په خټه پړ شي
راشه راشه دا ډير ناز و کبر مه کړه     ياره خو به دي دا ناز په جهان وړ شي
دا رخسار چه دي روښان تر آئينې دي     عاقبت به د لحد په خاورو خړ شي
مراد خو واړه دلبري ده غزا وشوه     که د سرو په څير څوك په قامت لوړ شي
نيك نامي له نيك خويۍ نه پيدا کيږي     دغه چاره نه په سوك نه په لوړ شي
عاشقان چه پښيمانيږي هغه نه کا     هغه سوك د بې هنر وي چه خپړ شي
دا خو زه له مشقته تا ته وايم     گڼه ځان له سرنوشته چا ژغړ شي
د هوا په نغوته مه ځه که دانا يې     د هوا ويشتلي غشي زر په خوړ شي
وران به نه کاندي يو حرف د خپلي بخري     که په اوښو د چا درست جهان چقړ شي
په تدبير به د تقدير کښلي نور نه کړې     د قسمت علاج په عقل کله کړ شي
په رحمان باندي بې ياره صبر گران دي     لکه زهر چه ديده دانسته نغړ شي

له دې کټه له پوزي خو به ولاړ شې     ترو بيا خداي خبر چه کوم خوا ته به لاړ شې
په ظاهر صورت خو هسي معلوميږې     چه به خس غوندي تر پښو لاندي لتاړ شې

د آسمان زمکه به وي او ته به نه يې    په ودانه ودانۍ کښې به ويجاړ شې
د بهار د گلو عمر مدام نه وي    عندليب غوندي به پاتي په اهاړ شې
په ويلاړ ويلاړ به ځان ور پسي ورك کړې    چري نه وي چه د ترکو په ويلاړ شې
که ليليٰ غواړې بايده دي دا رحمانه    چه مجنون غوندي ساکن د کوه و کاړ شې

هر چه ستا په زخندان کښې ئې منزل شي    لکه خس په تناره کښې به جلبل شي
څوك چه نوم د ستا د شونډو په خوله واخلي    که ئې زهر وي په خوله کښې هم عسل شي
په هجران کښې زه بې برگ و بې نوا يم    لکه کښت چه اوبه نه مومي شذل شي
په عاشق باندي دا هسي گمان مه کړه    چه يار زړه ور څخه يوسي تش گوگل شي
په جهان تر آشنايۍ خواږه څه نشته    ولي حيف دي چه هجران په کښې حنظل شي
زه رحمان بې ياره هسي شول و شل شم    لکه کب چه بې محيطه شول و شل شي

که د زړه په وينو رنگ د چا گوگل شي    چه بيلتون په جهان گرزي خو به سيل شي
که د اوښو په درياب باندي نهال کړې    نيشکر به نيشکر شي نل به نل شي
مشقت د سړي واړه حبطه کا    په شوره کښې چه د گل بوټي نهل شي
د دنيا ياري دوستي څه پکار نه ده    له اوله يار و دوست وي پسې غل شي
که هر څو ئې و بله مهر و محبت وي    نهايت سره په جنگ و په جدل شي
په مثال د دروغژني مرغلري    آب و تاب ئې په دوه ورځي کښې بدل شي
که ئې زنه د ځواني په وقت کښې سيب وي    هغه سيب ئې په پيرۍ کښې بيا حنظل شي
د رقيب له بده خويه به څه وايم    ترو دا گوره چه لا يار ور سره مل شي
زه رحمان په ښه په بد د يار پوهيږم    کاشکي زهر په دهن د چا عسل شي

که سل ځله هم کنار و هم بغل شي    د دنيا په مينه واړه سره بيل شي
دا چه اوس په يوه کور کښې سره ناست دي    عاقبت به ئې جدا جدا منزل شي
دا گلونه چه ئې ځاي دي په دستار کښې    همه واړه به تر پښو لاندي غوبل شي
دا پي مخي چه ئې مخ د نمر په څير دي    تور وينښته به ئې په مخ باندي ځنگل شي
دا شيرين شيرين شربت چه د وصال شي    د هجران په وقت به زهر هلاهل شي
ما د يار په بيلتانه کښې دي ليدلي    که دانا د زمانې وي مبدل شي
پښه له ويري د وصال په مزکه نږدي    چه خبر د جدايۍ په دل دل شي

د دې هسي رنج علاج به څوك په څه كا — چه نه فهم د چا رسي نه اټكل شي
كه د غرونو په سر گرزي سر ئې ټيټ وي — هر چه زړه ئې د خوبانو په يرغل شي
د رحمان خاطر غمونو هسي زنگ كړ — مگر جام د مي ناب وي چه صيقل شي

هغه دم چه زړه مال شي — يو ساعت ور باندي كال شي
حيران تللي وي په فكر — فراموش ئې قيل و قال شي
نه ئې گفت نه ئې شنود وي — په غوږ كوڼ په ژبه لال شي
نه جواب و چا ته كاندي — نه ئې غوږ د چا په سوال شي
علم عقل څني پاڅي — درست صورت ئې خواب و خيال شي
په رنځو ستر گو اوده وي — لكه نقش د ديوال شي
قوت ئې وينې د ځگر وي — هم دغه ئې اشتغال شي
د چشمانو له بارانه — په رخسار ئې پشكال شي
په سبب د عاشقۍ — تير تر آل و تر عيال شي
هم تر آل و تر عياله — هم تر مال و تر منال شي
په خپل درد و په خپل غم كښي — تر عالمه فارغ بال شي
نه طاقت نه ئې مجال وي — بې طاقت و بې مجال شي
كه ژوندي وي په جهان كښي — د مرده ؤ په مثال شي
په خشكۍ كښي ماهي گوره — هسي بې تيغه حلال شي
پاڅيدي نه شي له ځايه — په زړه غوڅ په تن كهال شي
د ويشتليو په څير يون كا — له كل خلقو په دنبال شي
لكه خس د لويي لاري — تر قدم لاندي پايمال شي
خداي له غمه سړي ژغوره — بيا لا بويه چه خوشحال شي
چه د زړه ولې شي غوڅي — نور ژوندون ئې په اشكال شي
د باغبان ستر گي كا سپيني — چه تازه نخل نهال شي
روئيدن د كښت آسان دي — پرورش ئې ډير جنجال شي
ويراني په يوه دم شي — وداني په ډيره اشكال شي
چه پلار ومري بيا له بويه — چه ئې زوي با كمال شي
څوك خبر دي له دې دوره — چه په ما به پيښ څه حال شي
چه په حال كښي ئې حال نه وي — څه اميد په استقبال شي

د یوه ساعت له مخه    خدای زده څه رنګ به احوال شي
د دنیا چاري فاني دي    رفت آمد ئې په یرغال شي
په مثال کښې لکه سوري    خوار و شاد د هر دیوال شي
اعتبار په اوبو مه کړه    چه استاد ئې په غربال شي
د بنیو په ځنبول کښې    شال شړی کا شړی مثال شي
که بادشاه د ولایت وي    کندولي په لاس ګنګال شي
په ثواب ئې غلط مه شه    په یوه ساعت وبال شي
په کمال ئې مه نازیږه    په یوه ګړي زوال شي
د هاتیانو سوداګر وي    بیا د کاؤ و خر دلال شي
جوهري وي جوهر پلوري    خاوري اغږي کلال شي
کلالي وګل کاري کا    فروشنده د مات صفال شي
په هستی کښې ئې اشراف وي    په نیستی کښې ئې اوزال شي
د ځوانی په وقت کښې شیر وي    د پیری په وقت شغال شي
چه مشهور په صداقت وي    پوچ ګوئي واخلي بطال شي
محتسب وي احتساب کا    کوتوالي واخلي کوتوال شي
نیکوکار وي نیک عمل کړي    بدکردار و بد افعال شي
سر نوشت د سړي خپل دي    یو عیسیٰ وي بل دجال شي
چه نیک بخت وي نیکوئي کا    چه بدبخت وي بد سګال شي
لاس و پښې د هغه نیسه    چه خوښخویه خوش خصال شي
په هجران کښې نا امید مه شه    خدای قادر دي که وصال شي
په حرامو کښې امید کړه    ګوندي مخ دي په حلال شي
کافر وباسي له کفره    په یوه ساعت ابدال شي
تور بهتر کاندي تر سپینو    په سپین مخ باندي تور خال شي
آرزومند د یوه خس وي    خداوند د ملك و مال شي
چه سیالي ئې کړې نه وي    له سیالانو سره سیال شي
په ډیر عمر منفصل وي    په ساعت کښې اتصال شي
ممکنات به منع نه کا    که څوك سل ځله سنبال شي
چه د خدای رضا شي پیښه    رمل پاتي د رمال شي
فال به څه ګوري رحمانه    خپل افعال د سړي فال شي

هغه زړه چه خداي روښان کا جام د جم شي    په دا جام کښي ور ښکاره تمام عالم شي
په آدم کښي د حيوان خويونه هم شته    بيا هاله ئې ادم بوله چه آدم شي
چه خويونه د چارپايايو په کښي نه وي    سړی هوښ په سړي هله مسلم شي
چه اغوستي ئې لباس وي د پاکانو    د ناپاکو چاري کاندي خو به گرم شي
که هر څو طعام لذيذ وي مزه نه کا    چه يوه ذره نمك ئې زيات و کم شي
ښادي هر چري غم په اندازه وي    د هغو به څه ښادي وي چه بې غم شي
هر چه خپله رضا پاسلوي قضا ته    که هر څو په ځان ناخوښ وي خوښ خورم شي
عاشقي چه تر کماله ورسيږي    د خپل يار له لاسه زخم ئې مرهم شي
که په ځان باندي قدم کيږدې رحمانه    نه فلکه به دي لاندي تر قدم شي

د عاشق بې خپله ياره قرار نه شي    بې طبيبه قراري د بيمار نه شي
چه په لوح محفوظ کښي ښکلي ليوني وي    په تعليم د معلم به هوښيار نه شي
زوي د پلار په غيږ کښي پروت وي روح ئې لاړ شي    د قضا علاج په مور و په پلار نه شي
د هغو چه خداي کمال حسن روزي کړ    هيڅ نقصان ئې د منکر په انکار نه شي
درد و غم د عاشقۍ چه ډير مشکل دي    هيڅ سړي دي په دا رنځ گرفتار نه شي
زه همه عمر له خدايه دغه خواست کړم    چه دي يار له خپله ياره ويزار نه شي
که هر څو ئې دلبري و دل جوئي کا    د رحمان په ترکو هيڅ اعتبار نه شي

آشنائې توره بلا ده آشنا مه شې    جدايي به دي فنا کا فنا مه شې
درد و غم به دي د زړه ولي کا غوځي    گرفتار په درد و غم د جانا مه شي
په زيړ رنگ به دي تل سرې اوښي بهيږي    د دو رنگو په څير گل د رعنا مه شې
هم په دا چه دروغژن د خداي دښمن دي    و هيچا ته دروغژن په وينا مه شې
که اعلیٰ مرتبه غواړې عاشقي ده    نور همه واړه ادنیٰ دي ادنیٰ مه شې
هميشه به سر نگون په فکر ناست يې    د رحمان هسي مشغول په ثنا مه شې

چه مجنون غوندي يو موټي استخوان شي    په قوت د عاشقۍ به پهلوان شي
عاشقانو په شکست کښي بري بيا موند    دلته توان د هغه رسي چه ناتوان شي
زيړي رنگ د عاشقانو هسي مرتبه ده    چه آفتاب غوندي څرگند په درست جهان شي

له چشمانو ئې باران رحمت ووري — زرغونه ئې په چهره باندي زعفران شي
له رخساره حال د زړونو معلومېږي — له بهاره نيك و بد د كال عيان شي
له نكتې نه تمام علم حاصلېږي — درست خروار له يوه مشته نمايان شي
پكار نه دي مخالف هزار تقريره — موافق له حاله نيم كلام داستان شي
لكه مړ له كار و باره وي وتلي — د هغو خاوري په سر چه غافلان شي
كه دي ډېر عمر پكار دي غفلت مه كړه — په اوده باندي سل كاله يو زمان شي
د غفلت بنياد د اوښو په موج خيژي — يو څڅو پكي خواب آلود لره طوفان شي
ړوند په خپله عصا پريوزي و كوهي ته — خپل دليل د كم دليل د ځان تاوان شي
سر كشي د عاجزانو پكار نه ده — هر ميږي چه وزر وكاندي پښيمان شي
موم دلان به ئې له شره لمن ژغوري — سنگدلان كه عين لعل د بدخشان شي
چه كيميا د قناعت ځې په لاس كښېوزي — د شړۍ په خرقه كښې بادشاهان شي
بل پوشاك ئې پكار نه وي بې نمده — هغه زړه چه آئينه غوندي روښان شي
عاشقي ده ر جمله بلاؤ زياته — و مجنون ته ديوودد واړه حيران شي
كاتبان به وركا دُر د خپلو غوړو — كه ئې تير تر غوړو شعر د رحمان شي

د سكوت په تيغ چه ژبه بريده شي — لا قلم غوندي په قال كښې دويده شي
همره اور د عاشقي په زړه كښې يو شي — چه لاله ئې له تربته دميده شي
خم ابرو د يار مي نقش په ليمه دي — لكه مياشت چه په لوي بحر كښې ليده شي
هميشه ئې د خپل يار په لوري دووی — نهايت چه په دادو كښې رسيده شي
څه حاجت دي چه زه يار و چا ته ستايم — كار همه د خپلو سترگو په ديده شي
كله وي چه يو د بل په ويل غلېږي — مگر صافه د چا خپله عقيده شي
خود ځرگند وي لكه صبح په جهان كښې — هر گريوان چه په يارۍ كښې د ديده شي
ابرو ئي د عاشق هلته ځان ځرگند كا — چه ئې نم د زړه له سترگو چكيده شي
د آه غشي ئي په زمكه كله لگي — هر قامت چه كمان طوره خميده شي
بې مطلوبه ئې هيڅ فهم په چا نه وي — هر طالب چه په طلب كښې فهميده شي
هر چه زړه په مهرويانو باندي بايلي — بې ديناره و بې درمه خريده شي
ما د يار په خير بل مخ نه دي ليدلي — مگر پس چه له نن ورځي آفريده شي
يا به شهد يا به قند يا به نبات وي — هر كلام چه له رحمانه شنيده شي

چه سړي له بله بد وايي بد گوي شي | لا ترې بله خوا روان د ده بد بوي شي
مرده شوي چه هوس کا د بل و مرگ ته | بل هم پس د ده له مرگه مرده شوي شي
دوست دښمن د سړي واړه خپل عمل دي | هم په دا مقدار ئې اجر موي بموي شي
هره ونه چه کږه په يوه لور وي | عاقبت ئې پريواته په هغه سوي شي
په لويۍ کښې نور څه نشته بې زواله | هلکان د هلکتوب په سبب پوي شي
د اوبو اصل له خاورو پيدا کيږي | خاکساري د خاکسارانو په آبروي شي
همره زيان له خوگه خرسه نه رسيږي | لکه څوك په آدميانو کښې بد خوي شي
سړی هوښ چه د سړي له تنه پاڅي | د سړيو په جامه کښې خربشوي شي
و هغو وته چه خداي پخپله وښود | څه حاجت ئې د رحمان په گفتگوي شي

وقت د عيش و طرب ير شه خزان راغي | ځانکندن د بلبلانو په ځان راغي
دلداري مي ترې اميد وه باري څه کړم | هغه يار د دلبرانو په شان راغي
سود سودا د عاشقۍ که نفع مند وي | ما هيڅ سود په کښې بيا نه موند نقصان راغي
تمام عمر که وصال و همره نه و | لکه يو زمان د ښکليو هجران راغي
آشنائي مي په هوس وه خو چه بيل شوم | دواړه لاس مي و بله ومښو ارمان راغي
گوي ځما د زړه ئې يووړ په چوگان کښې | بيا د ناز په نيلي سور په جولان راغي
غنچه لب به په خندا نه کا پريشانه | په شيبو ځما د آوښو باران راغي
د ميرزا د ارزاني دعوې به پرې کا | قدر دان د شاعرانو رحمان راغي

چه وصال د خپل جانان مي دي موندلي | گنج د در و د مرجان موي دي موندلي
همره طمع مي له خپله بخته نه وه | نه پوهيږم چه څه شان مي دي موندلي
که په ډير مشقت لاس لره خداي راوست | زه خو وايم چه آسان مي دي موندلي
چه مي يو نفس وصال ور سره وشه | واړه اجر د هجران مي دي موندلي
څه عجب دي که تمام جهان ځما شي | چه بادشاه د درست جهان مي دي موندلي
زه رحمان په خپل اشعار شکر گذار يم | چه دا هسي رنگ ديوان مي دي موندلي

ته چه خپله بې عقلي هوښياري بولې | کاشکي بيا مومې د غوښتو په نرخ شولې
عشق يو داد دي په عاشق باندي له خدانه | هسي نه دي چه ئې پيرې يا ئې پرولې
زليخا غوندي به بله شيدا نه وي | که د مصر مستورې شي واړه تولې

هغه بحر څه په بحر حساب نه دي — چه اوبه ئې خاك آلودي وي ختولې
له هغو سره به څه فکر د يار وي — چه په غم وي د کاله يا د کهولې
عاشقي څه د نغري په غاړه نه شي — څو په يار پسي وا نه خلې ځلي څولې
د وصال په نعمتونو غره مه شه — جدايي ئې خلقې کړې په زړه ځمولې
در گوهر په تله نه دي چا تللي — د رحمان شعر گوهر دي څه ئې تولې

ما چه سترگي و گلرخ ته واړه ولې — په هغو سترگو مي ويني وژړلې
د عمل جزا مي بيا مونده بر حقه — دا دستور دي چه کرې هغه آخلې
تر غمزو ئې يو په سله زره قاتل دي — تل چړې توري په کاڼې تيرولې
خود کرده به څه تاوان له چا نه غواړي — چه ئې غوځي په خپل تيغ کړې سپيني خپلې
ما لا مرگ د ستا په مينه کښي هاله ليد — چه گدا د پادشاهۍ لافي وهلې
له خوبانو به څوك څه وفا غواړي — سرو کله د کشمش ميوه نيولې
په دربار ئې سنډاسي شه ورته کښينه — تار په تار د سر ويښته ايرې منلې
که دفتر د خپل قسمت د جا په لاس وي — بدي بخري به چا کله قبلولې
چه نيکي ئې ورکوله و نيکانو — دې بدانو څه بدي نه وه غوښتلې
څوك له خاورو ايرو پاڅوي تخت ورکړي — څوك له تخته د ايرو په ډيران ولې
ستا چه نيت د آشنايۍ نه و صنمه — د رحمان سترگي دي ولي نه گنډلې
د ازل په ورځ د بخرو جواري وه — اي رحمانه چا بايلودې چا گټلې

بد لوې په دنيا دين و ايمان ولي؟ — نه پوهيږې په خپل سود و په زيان ولي؟
هميشه په ځاي د شکر شکايت کړې — منکريږې په عطا د سبحان ولي؟
در بخښلي خداي د هري چاري توان دي — په ډير توان کښي خپسر بولې ناتوان ولي؟
مدام اوښي تويوې د رزق له غمه — در گوهر پر بها پلورې ارزان ولي؟
چه په هر بيگاه سامان د هر سبا کړې — کور و کر شوې د محشر په سامان ولي؟
هيڅ گياه له ځايه نه خوځي نم مومي — ته د رزق په طلب مرې جهان ولي؟
چه پخوا تر قضا خپله رضا غواړې — بيهوده په لوټو ولې آسمان ولي؟
په ژوند ومره چه د مرگ له غمه خلاص شې — آسان کار دي کړ په ځان باندي گران ولي؟
غيري ميني دي په زړه باندي انبار کړې — په کعبه کښي ننباسې بتان ولي؟
زړه د نفس په پيروۍ در څخه لاړ شه — د خبيث په لاس دي ورکړ قران ولي؟

چه یوسف د حبشي په بها مومې   د مطلوب په بهانه ښندې ځان ولي؟
بد له بدو پښیماني کاندي رحمانه   ته په خپلو بدو نه شوې پښیمان ولي؟

چا چه نمري وي خپلو وینو وللي   د شبنم په څیر به تل وي سپین سپیځلي
که صیاد څخه د اوښو دانې نه وي   د هوا مرغونه نه دي چا نیولي
هر یو مخ کله لایق د آبرویی دي   اوښي نه درومي په مخ د هر ناولي
هره شپه به شمع څه لره ژړا کړه   که ئې نه وي په ژړا کښي څه موندلي
ما رحمان به ژړا نه کړه له خوبانو   که مي نه وي په قسمت دا هسي ښکلي

په نور څه پسي بې خدانه ژاړې ولي؟   د چارپای په څیر بې ځایه ناړې ولي؟
چي روتۍ میده کوې په شخوند خو جوړ یې   ترو خبري کوې لواړي لواړې ولي؟
ته دا خپل کلام میده په دا خپل شخوند کړه   تا داړلو ته تیرې کړې داړې ولي؟
هغه کار چه دي په نرم ویل کیږي   بیهوده په بیرته ولي لاړې ولي؟
نیك له نیکو بد له بدو مناسب دي   نیك و بد سره په بله نغاړې ولي؟
یو قدم د خدای په لور ایښودي نه شې   تمامي عمر په پراته لارې ولي؟
تل دي طوق تعلق په غاړه کښیوست   وکښې نه شې دغه طوق له غاړې ولي؟
چه په ورځ د شیخۍ لافي کړې رحمانه   په شپه می له می فروشه غواړې ولي؟

هسي ډوب یم ستا د غم په دریاب تللي   چه ماهي غوندي بې تیغه یم کوتلي
ما لیدلې چه لینده دي وه را کښلې   تا د ورځو په لینده یم زه را کښلي
په خپل ځان مي تر هغه پوري نظر و   څو مي ته په نظر نه وې کښیوتلي
اوس مي ستا په مینه ځان و جهان هیر شه   د سیلاب په مخ کښې لاړم لکه خلي
عاشقي به ئې د باد په مخ بڼه کا   که ئې ځان وي کوه قاف غوندي پنولي
چه د عشق له بحره روغ سلامت ووزی   زه ئې نن گڼم له موره زیږیدلي
هر چه واوړي په بلا د تورو زلفو   هغه بیا تر کوره نه دي ورغلي
چه له غرونو پریوتلي وي بیا پاڅې   پاڅیدي نه شي د زړونو پریوتلي
چه د اور لنبو وهلي وي بیا روغ شي   نه رغیږي د هجران لنبو وهلي
زه رحمان ئې هر دم وینم ستا په غم کښي   که خپل مرگ په سترگو نه دي چا لیدلي

خداي دي وژغوره له هري پريشانۍ اي ځما د کور و کلي ودانۍ
عاشقي چه ما ګڼله ناداني وه اوس خبر شوم له دې خپلې نادانۍ
تر ورخ تيري اوبه بيرته نه جار ووزي څه پکار دي پوچ بې ځايه پښيمانۍ
وداني په يوه دم کښي شي ويرانه مرد هغه چه کړي د وراني ودانۍ
لکه باد چه ځان وهي له کوهه دشته زه په تا پسي کوم سرگردانۍ
دا خو زه د ستا د غم سره لوڅيږم څوك له ديوه سره کړي پهلوانۍ
چه په آب و په آتش په خاك و باد وي څه اميد دي په هغه زندکانۍ
ته چه دا رنگي اوږدې وعدې کړې کشکي راکړې و ما خط د امانۍ
زه او ته که هغه وقت وي چا به نه وې د مجنون او د ليلي قصه خوانۍ
ځما ستا و نندارو ته به حيران وو که ژوندي وي آدم خان او درخانۍ
و هر چا ته چه وايم حيرانيږي څه به وايم د رحمان له حيرانۍ

زه د ستا له غمه ژاړم واړه ويني واړې وينې واړه وينې واړه وينې
خود مي وينې چه په تش کاته دي مرمه لا خنجر په کاڼي مږې دل سنگيني
هر ارمان مي په حضور د سترگو وژني لايقين دي د زړه نه شي بې يقيني
عالم ستا په مينه ژوي نه پوهيږم زه په څه سبب وژلي يم ستا ميني
ډير عالم به نوري رنگ کا معلوميږي تا چه هسي جامې واغوستې رنگيني
پښې ئې نه وي چه و بله خوا ته درومي هسي سکني په غمزه د عاشق سپيني
که صورت موي پر بله پوري معلوميږي زړه مي ستا له غمه چاودي نازنيني
هغه څوك دي چه تر تا به بهترين وي اي تر وار و مهرويانو بهتريني
چه دي زلفي د رحمان په زړه وريځ کړي تر بڼو ئې ځکه ښاځي اوښي ويني

هر چه کښت ئې په باران و په سيلاب وي د هغو عمر به واړه په عذاب وي
هغه ملك چه په کښي سيند و رود بار نه وي دهقانان به ئې همه خانه خراب وي
و آسمان ته به ئې سترگي وي ختلي د باران له انتظاره به بې خواب وي
لکه څوك چه کړوي ئې په کرهۍ کښي د هغه ماهي په طور به کباب وي
لا به کله بارانونه پرې نزول شي چه نخل و زراعت په ئې سيراب وي
هميشه له خدايه خواست د اوبو کاندي که ئې چري خواست په عمر مستجاب وي

لکه تل چه ئې په زوړ د اوبو غوړ وي    همره غوړ ئې نه په چنگ نه په رباب وي

که همه عمر باران ور باندي ووري    لا گرمي ئې په صورت کښي د آفتاب وي

د گرمۍ و د خشکۍ له دهشته    د آفتاب په څیر گمان ئې په ماهتاب وي

د اوبو له ډیري ډیري قیمتۍ نه    لرگي لوښي ئې مردار په منجلاب وي

فرق د پاکو د ناپاکو اوبو نه کړي    که اوبه ئې گډې وډې په پیشاب وي

د اوبو په غلا چه ور شي نه جار ووزي    که ساکن د خانقاه او د محراب وي

د اوبو په ویش چه ورشي انصاف نه کا    که په لاس ئې ورقونه د کتاب وي

د اوبو ثواب ئې نه کیږي له لاسه    که په کوټ اوبو ئې عین د حج ثواب وي

د باران امید ئې نه کیږي له خدایه    که ئې سپه و ورځ په سر باندي سحاب وي

پلیتي به ئې له تنه څه رنگ درومي    چه اوبه په کښي نایابې تر گلاب وي

هیڅ ئې مه پوښته له غسله له اودسه    چه یو څاڅکي پرې گوهر غوندي نایاب وي

په سبب د ډیره ډیره تیممه    همیشه ئې سپیره ږیره په تراب وي

د للمي سړی په مخ کښي وي آب چري    هغه خلق چه بې آب وي خو بې آب وي

په آبۍ کښي لا هم وي خونه ویرانه    هغه کلي چه د بل کلي پائیناب وي

یو به نی سی هیڅ بري له سري ورخه    د پائیناب سړي که زوي هم د ارباب وي

سم حساب له عزیزانو کله مومي    تل تر تله ئې د بل لاندي حساب وي

نه طاقت د بد ویل لري نه صبر    لکه مار په ملا وهلي پیچ و تاب وي

نه ئې مرگ نه ئې قتنه له لاسه کیږي    لاس تړلي د خپل شرم به طناب وي

چه ئې زیست یا ئې روزگار په تحمل شي    همیشه ئې له بدۍ اجتناب وي

که یوه بده وینا ئې له خولې ووزي    هغه دم ئې په خپل ځان باندي عتاب وي

هسي شان سړي تیري ور باندي وکړي    چه په عمر نه د سوال نه د ځواب وي

همسایه ئې چریکار و پښتانه شي    او په اصل به موچي یا به قصاب وي

ملایم ویل اثر ور باندي نه کړي    چه په زړه کښي ئې نه شرم نه حجاب وي

لکه دیو وي د سړیو په صورت شي    ته گمان کړې چه سړی دي دي دواب وي

په هیڅ رنگ له بده خویه نه جار ووزي    هسي مست د جاهلۍ په شراب وي

چه اشراف د هسي خرسو په لاس کیوزي    ترو خلاصي به ئې له خونه په کوم باب وي

هسي رزق دي خداي هیجا لره ور نه کا    که به رزق د چا په هسي رنگ اسباب وي

تر دا هسي زمیندارو هغه ښه دي    چه نوکر د یوه تور کافر کلاب وي

نوکري د یوه سپي ور لره ښه ده    هغه بریږده چه لا نوم ئې د نواب وي

د خشکۍ له غمه قوم د رحمان خوښ دي    که رفتن ئې له جهانه په شتاب وي

تل دي ستا خواب آلودو سترگو خواب وي چه فتنه په خواب وده شي ډير ثواب وي
لکه مي چه په مينا کښي تجلي کا نور د حسن په حجاب کښي بې حجاب وي
ته چه ما ته لولوي پټې د صبر زه هم ډير په دا راضي يم که مي تاب وي
زه په دا سبب په ترکو پسي ژاړم چه ژړا د عاشقانو د مخ آب وي
که نادان وي هم دا همره خو پوهيږی څوك چه نه ژاړي په يار پسی كذاب وي
د عاشق سترگي په دا سبب شوې پاکي چه مدام د جوي په سر لکه حباب وي
له خالي خوني به څه وړي چه څه نه وي که ختلي د حباب په سر سيلاب وي
هم په دا ئې د نغمې اثر پيدا شه چه په تشه گيډه صبر د رباب وي
د حريص له خپله نقده بهره نشته لکه مار د گنج د پاسه پيچ و تاب وي
کاملان تعلقات د دنيا نه کا لکه پاڼي د خزان پښه په رکاب وي
غفلت هيڅ مناسب نه دي په دنيا کښي ساکنان د دهر کل واړه خراب وي
چه ښادي غواړي بې شماره بې حسابه په رحمان به د غمونو څه حساب وي

د هغو چه څبله مهر و محبت وي په هستی او په نيستی کښي فراغت وي
عاشقي ده تر هغه مقام په هور ته چه د چا مقام په رنځ و په راحت وي
څه د اور په لنبو سوي څه د عشق واړه عشق دي که هجران وي که وصلت وي
چه مطلب و مدعا د سړي خداي شي ناست ولاړ ئې همه واړه عبادت وي
که په دوه قدمه ومري هم حاجي شي چا چه کړي د مکې په لوري نيت وي
هغه څوك چه پير وي د اوليا کا دا ئې واړه په معنیٰ کښي ولايت وي
که د زرو په تخت کښيني غزا وشوه و فهيم وته کم فهمه بې عزت وي
خاوري زر په سړي واړه برابر شي هغه دم چه له جهانه په رحلت وي
د دانا او د نادان تر ميان يو حد دي هوښياري تر حد په هورته حماقت وي
تجاوز له خپله حده پکار نه دي د هر چا په خپله خونه کښي حرمت وي
نور عالم که د دنيا غمونه کاندي د رحمان سره دي غم د آخرت وي

د هغې بنا چه نوم محنت آباد وي ترو خاطر به په کښي څنگه د چا ښاد وي
په خواړه او په څښو كله ويني نيسي هر مرغه چه په قفس کښي د صياد وي
د رنځور په خوله کښي کله مزه کاندي که سل رنگه نعمتونه ئې معتاد وي
پاي بسته ولره هر چرته زندان وي هغه هر چرته آزاد وي چه آزاد وي

عشق تغییر او تبدیل نه لري یکرنګ دي    د آشنا له لاسه داد وي که بیداد وي
د ښادۍ نښه هغه وي په جهان کښې    چه په یار پسې بې بیخه بې بنیاد وي
بودني هغه باله شي په معنیٰ کښې    چه دنیا ئې په نابوده اعتقاد وي
نقصاني دي د دنیا عمارتونه    که تر لاندې ئې سل ستني د فولاد وي
زندګي که څوك پوهیږي خضور دم دي    آینده و رفته کله د چا یاد وي
دا دنیا لکه سیلاب هسي بهیږي    نه ځې چا څخه استوګنه نه استاد وي
چه کامله اراده لري په زړه کښې    د مرشد له اشارته بې ارشاد وي
و هغو ته چه خداي خود پخپله وښود    څه حاجت ئې په ښوونه د استاد وي
ډیر یاران ور څخه بیل شو و هیڅ ګرم نه دي    که رحمان له جدایۍ نه په فریاد وي

په دنیا کښې که هر څو وبله پیوند وي    پس له مرګه به ئې درست صورت بند بند وي
زه به وخورمه په دا باب هزار قسمه    که باور دي په قسم و په سوګند وي
یا به وړاندي تر تا درومي یا به ورستو    که دي ورور که دي عزیز که دي فرزند وي
زمانه به ئې تر پښو لاندي پایمال کا    که په قطعه تر آسمان پوري بلند وي
هم ئې هسي پیمانه ګڼه په خاورو    که ئې ډکه خوله تمام عمر په قند وي
هر چه کاندي آزادي په دا جهان کښې    پس له مرګه به هم واړه په بند وي
هر چه غاړه ئې و حق ته ایښې نه وي    همیشه به ئې په غاړه کښې کمند وي
دا چه زه و تا ته وایمه که خداي کا    په آیت و په حدیث کښې به څرګند وي
ته چه نه کوې باور په آیاتونو    ترو ځما ویل به څه در لره پند وي
ناپسند به د منکر په انکار نه شي    هر کلام چه دلپذیر و دل پسند وي
خدایه ګنج د قناعت و رحمان ورکړې    چه بې ملکه بې حشمته دولتمند وي

که د درستي دنیا غم مي په سر بار وي    واړه سهل دي که یار را سره یار وي
هزار وار به ئې د یار تر نامه ځار کړم    که په قطع مي دا یو صورت هزار وي
هغه نه دي په شماره د عاشقانو    چه د خپل تټر داغونه ئې په شمار وي
مشکل کار د عاشقۍ چه خداي پیدا کړ    کله بل جهان هسي مشکل کار وي
څو ئې اوښې په مخ لاري روغي نه کا    د هغو و معشوقو ته کله لار وي
ته چه ګل ځما د یار په شکل غواړې    کله دا رنګه کلونه په ګلزار وي
نه مونده شي به بازار کښې نه په ښهر    هغه رخت چه د خوبانو په بازار وی

زه د یار په څیر مخ نه وینم په سترګو که په هره خوا خوبان هزار هزار وي
د عاشق نطر په ډیر و په لږ نه وي که دیدن د یار په لږ که په بسیار وي
شته هزار هزار خوبان ولي سوګند دي که څما د یار په څیر د چا یار وي
مرګ له هیچا سره وار نه کا رحمانه یار به ځان تر یار وړنبي کا که ئې وار وي

له هغو سره به څه فکر د یار وي چه یاران ئې په هر لور هزار هزار وي
چه آشنا پسي ویشتلي هم هغه وي چه له توري آشنائۍ ئې استغفار وي
صبوري او قراري دي په ما زوم شي که بې تا به مي یا صبر یا قرار وي
هر ژوندون د یار په وصل ښایسته وي بې مینه که ژوندون وي څه پکار وي
که د یار له لاسه اور په یار بلیږي هغه اور و عاشقانو ته ګلزار وي
په یارۍ کښي آزار نشته خداي دي نه کا که زره به څما زړه له تا آزار وي
و هغو ته عاشق مه ویلي بویه چه ئې فکر یا د سر یا د دستار وي
ځاي ئې اور شي چه زنار ئې شي په غاړه ولي نه چه ستا د زلفو زنار دار وي
ستا د زلفو زنار دار که په اور سوځي دغه اور به هم ربښتیا ستا د رخسار وي
هغه جونه به لیلې غوندي رسوا شي چه رحمان غوندي مجنون ئې په دیار وي

که د ستا د خاطر مینه په اغیار وي ستا دپاره دي اغیار هم څما یار وي
هر سړي چه په یو مخ باندي مین وي له یوه مخه ئې سل مخه پکار وي
هر چه کاندي نوکري د پادشاهانو خواه مخواه به د دربانو منت بار وي
څه به ستا له رقیبانو زه مانه کړم دا دستور دي چه له ګله سره خار وي
څو سل خاره ئې خښ نه شي په ټټو کښي کله وي چه د بلبل و ګل ته لار وي
سجاده به د ساقي د لاري فرش کا هر صوفي چه د سرو سترګو خریدار وي
په جذبه د عاشقۍ به لیوني شي که په قطع افلاطون غوندي هوښیار وي
په رحمان باندي به هیڅ ملامت نه کا هر سړی چه ستا له مخه خبر دار وي

کاشکي زه خاوري ایرې د ستا د در وي چه قدم دي همیشه څما په سر وي
خو یو ځله څما ستا و بله مخ شوي نور مي موخه ستا د غشیو په ټټر وي
تمام تن مي د رنځور په څیر اوړه وي خو په ما د تورو سترګو یو نظر وي
په زیړ رنك په سپینو اوښو به ما بیا موند که د ترکو ملاقات په سیم و زر وي

ملامت به په ما څه لره وایه شه　　که د ستا له دلبرۍ نه څوک خبر وي
مرتبه که ستا د عشق شي ور څرگنده　　ملايك به واړه وايي چه بشر وي
تماشه به ځما هله در ښکاره شوه　　که ته ما غوندي بيدل و زه دلبر وي
په خونبار به ځما سترگو غونديي نه وه　　که په مخ مي د تيرو تورو پرهر وي
ستا په درد کښي طبيب وايي و رحمان ته　　لا به ښه و که دي حال تر دا بتر وي

ډيري خولې ځما په ياد شکر خورې شوې　　بيا ځما په زمانه خاوري ايرې شوې
د چندڼو ونی وسوليدې لاړې　　هزار څاڅکي د شمشاد و په ايرې شوې
په هغو زمکو چه روغي پرې مانۍ وي　　د ايام په گردشونو اديرې شوې
په دنيا کښي چه بنياد د آشنايي کا　　د هجران توري هغه لره تيرې شوې
دا فلکه چه خداي پيدا کړ دا ئې خوي دي　　چه و چا ته ئې دعا چا ته ښيرې شوې
د دنيا د محلونو خښتي واړه　　و رحمان ته د سرونو منارې شوې

د وصال په هوا والوتي مرغه شوي　　د هجران په اورکښي درست صورت اوبه شوي
نه و زر کاله هوس نه مري له غمه　　سړي سخت دي گڼه يو اثر پرې شوي
زړه که چاودي هم له دې غم به وجاود　　چه د يار د بيلتانه خواري په زړه شوي
ر رقيب و ناکړدو ته چه نظر کړم　　د عاشق له آه ړوند په تور ليمه شوي
هيڅ پوره به دي نيمگړې نه شي خدانه　　که بيلتون د دوه يارانو وبله نه شوي
خداي رضا لره چا هسي تعويذ وکړييو ځل يار　　چه لړ زه د هغه يار تر فهم ښه شوي
په سترگو وليدي چه دا دي　　دغه پسه هر چه شولي بيا هاله شوي
نوم ئې يو ځل زما واخيستئ به ژبه　　نور مي نوم په دا جهان کښي پاتي نه شوي
لکه درست عمر په خوله د رقيب کار کا　　دغه هستي يو زمان ځما په خوله شوي
زه رحمان په دا خبره حق حيران يم　　نه پوهيږم چه د يار له غمه څه شوي

چه په مخ باندي د اوښو يو رقم وي　　عين د تورو له پرهار سره سم وي
که گريوان مي د سپوږمۍ د نمر مشرق شي　　زه چه يار په سترگو نه وينم تور تم وي
دلته سر پورته کول د چا رسيري　　چه پخپله د يار زلفي خم در خم وي
کبرو ورځو غوندي نيش وهلي نه شي　　که په زړه د پاسه پروت د چا لرم وي
معشوقه چه د عاشق په غم وي غوڅه　　د عاشق سترگي دي ووزي چه ئې غم وي

همدمي د دوو همدمو هسي بويه    چه د دواړو همدمي په يوه دم وي
که د درست جهان ښادي ور باندي راشي    مه کړه خداي چه څوك بې ياره خوښ خورم وي
بل ستم د بيلتانه د پاسه نشته    که ليدلي چا په سل رنگه ستم وي
دا قضا څه تر قاضي موقوفه نه ده    خود پخپله يار تر ياره پوري گرم وي
راحت هر چري هغو لره لازم دي    چه په درد و محبت کښي مقدم وي
چه خوناب ئې د چشمانو مي ناب شي    پيوسته له دغه جامه سره جم وي
هيڅ حاجت د هنر نشته و رقيب ته    که په اصل کښي عرب وي که عجم وي
هنر مه غواړه طالع له خدايه غواړه    څه پکار بې سليمانه که خاتم وي
د رحمان خندا په اجر د ژړا ده    تازگي د گل په قدر د شبنم وي

ته چه ما ته وائې چه په چا باندي شيدا يې    زه په تا شيدا يم وايه ته چه يار د چا يې
زه به تا په کومه زيرکۍ شم پړولي    چا زده لکه تا زده همره وايه چه څه وايې
زه چه کبرجن وم عاشقۍ مي گردن مات کړه    ته چه لکه وې هم هغه هسي کبريا يې
ځان که ستا په مينه کښي فاني کړمه څه به وکړم    ته چه په دا هسي رنگ له آهه بې پروا يې
مرگ مي په تا ولي خداي اختر کړ نه پوهيږم    څه دي حاصل هم شته که مطلق په مرگ ځما يې
څه شو که يم زه انگشت نما په مينه ستا کښي    زيات له ما نه خوښ ته د قاضي هم د ملا يې
ستا د عشق تر توري ککرۍ د رحمان ځار شه    دا هم سهل کار دي ځما ياره که په دا يې

خو ځما په ورميږه ماتول شير يې    که په مرگ د رقيب هم هسي شمشير يې
مرگ خو ويني چه پخپله را پسې دي    څه محتاج ځما و مرگ وته ډير ډير يې
کبر و خيال خو لاله ځاپه ستا عادت و    او که نن ځما قصده په بل پير يې
دا بې شماره عاقلان به شي کم عقل    ته چه دا رنگه په زړه وکښه دلير يې
ستا خويونه به پخپله ځان څرگند کا    زه به څه وايم چه ته تر بلا تير يې
له حيرته دي تعريف کولي نشم    چه په څه رنگ دي ستا يم د چا په څير يې
ما چه ستا د لبو خوند واخيست محفوظ شوم    که سل ځله په ترخه ويل گندهير يې
د جهان ښکلي که واړه د رحمان شي    خداي دي نه کا چه ئې ته له دله هير يې

په يوه زره به وږي يا به موړ يې    په يوه ذره به گرم يا به سوړ يې
که ځواني له خدايه غواړې ځوان به ومرې    او که بس له ځوانۍ پائې خو به زوړ يې

سړي کله خو یا جوړ کله ناجوړ وي     خداي خو نه يې چه به تل تر تل جوړ يې
عاشقي به دي آسمان غوندي څرګند کا     که مجنون غوندي هر څو صورت ووړ يې
عاشقي بې جذبې چري ده رحمانه     ته مجذوب د يار په مهر کښي مروړ يې

په ځوانۍ کښي بد دماغه بد ګمان يې     چه پيري درباندي در شي بيا ناتوان يې
که په دا دي زړه ښه کيږي دا خو نشته     چه به هم تر ډيره ژوې هم به ځوان يې
چه هر ګز دي په لاس نه دي کښيوتوني     بيهوده د هغو چارو په ارمان يې
چه بې خدايه زړه ترې په نور څه پوري     هم په خداي هسي باور کړه چه ناتوان يې
هسي رنګ دي و هغه جهان ته شا کړه     ګويا تل به مستقيم په دا جهان يې
همره سر دي و خپل خداي وته ټيټ نه دي     لکه ټيټ په لور د خان و د سلطان يې
يوه شپه په طاعت نه شې رونولي     هره شپه په مال و ملك پسي پاسبان يې
په تسبيح دي تانده ژبه وچ لرګي شه     پوچ ګويۍ لره بلبل غوندي ګويان يې
و نمانځه ته چه نمر خيژي هاله پاځې     په قلبه پسي په نيمه شپه روان يې
اوداسه لره کوزه اخيستي نه شې     چه په لو او په لور ورشې پهلوان يې
پټي سترګي لکه سور په کانۍ ګرزې     که پريوزې و کوهي وته روان يې
پښيماني تر پښيمانۍ لا پخوا بويه     نه هغه چه بيا په تير ساعت پښيمان يې
د هلك په څير به لاس اچوې اور ته     نه خبر په خپل بهبود نه په نقصان يې
چه و بل ته نصيحت کا ځان ئې هير وي     نور څوك نه دي هغه ته عبدالرحمن يې

ورك شه ورك شه بد کردار و بد سړی     که دي ورور که دي عزيز وي که پرديی
تر هغه لا نيکو کار بيګانه ښه دي     چه بد کار شي د چا زوي او يا نمسی
لرګي لوښي همه واړه پرې مردار وي     بد کردار دي سور لنډي يا وړي سپی
هغه خلق به همه واړه ليوني کا     چه په کلي کښي يو سپي شي ليونی
بل علاج د ليونيو سپيو نشته     بې له مرګه چه ترې ډك کاندي کوهی
حرام خور د مخنثو په حساب وي     که په توره يا په تيغ وي مړنی
مړني ويلي بويه و هغه ته     چه بې وجهي آزار نه کا هيڅ سړی
ديګ اينښي په ديګدان ورښي تر تيغ     چه ئې سوړ په آه سرد نه شي نغری
هسي فيض ئې و هر چا وته رسيږي     چه باله شي د خپل وقت حاتم طی
اې رحمانه چه بد فهم او بد کردار شي     راته وايه سپی بهتر دي که سړی

چه دارو د درد و غم دي هغه می    ساقي راکړه يو دوه جامه پياپی
مي د خپلو لبو دانه د انگورو    چه اول ئې نوشيدن وي پسې قی
په هر تيغ کښي چه آب نه وي د شرابو    څوك د غم په غليم نه مومي بری
جام د ميو چه غمخوار د کل جهان شه    زه به اوسم په دا غم کښي تا بکی
راشه يو ځله مي هسي مست خراب کړه    چه خبر نه شم له حاله د هيڅ شی
بې خودي هسي پناه ده زور آوره    چه له هره غمه خلاص کاندي سړی
زه هغه تحصيل تمام گڼم په عشق کښي    چه ئې روغ وگړي بولي ليونی
رحمان صلحه له رقيب سره په دا کا    آشنا ښه دي البته خوړونکي سپی

که له ډيره غمه دم د چا ختی    زه به مړ ومه په عشق کښي لرغونی
زړه مي هسي ستا په تور زلفو بايلود    لکه ورك په توره شپه کا څوك کالی
په يوه ساعت مي رد هم مي قبول کا    نه پوهيږم چه ئې خپل يم که پردی
په يو لاس کښي ئې مرهم په بل خنجر دي    نه په مړيو کښي حساب يم نه ژوندی
که په مرگ د عاشقانو ئې رضا ده    خداي دي ما کا تر همه واړه وړنبی
خون بها مي دستې په مثل نشته    ما پخپله قبول کړي دا خپل سوی
څوك دي غم ځما په ډيرو اوښو نه خوري    کم به نه کا په خوردن سره ندی
د هجران په توره شپه کښي ئې ويريږم    چه ئې نه وينم د وصل سپين سپوږمی
د يار غم لکه مزري را باندي راشي    خداي دي پيښ نه کا په چا باندي مزری
چه پرې غم غلطومه د شپې پاڅم    کله مي په شونډو کيږدم لکه نی
که کتاب کله رباب په لاس را واخلم    باري درد مي په هيڅ رنگ نه کا کمی
همسايه مي واړه وواته له خوابه    که په سل کوټو دننه کړم زگيروی
که عاشق تر معشوقې پوري يو سپی دي    خداي د هجر په توره مه وژنه يو سپی
زه رحمان د يار په غم کښي هسي ډوب يم    چه هيڅ نه وينم په سترگو مگر دی

چه پخته شي آشنائي    تر منيان ووزي جدايي
و طالب وته وفا شي    د مطلوب بې وفايي
بادشاهي کاندي بدله    د ديدن په گدايي
خاني پلوري په اوربوشو    ميرزائي په ميرزايي
نظر نه کاندي هيچري    په لوئي په بداېي

ورته کفر څرګندیږي     خود بیني او خود رایي
خود رایي په عاشقي کښې     له عاشقه نه ښایي
معشوقې که بې وفا دي     عاشقان خو ئې ستایي
غوږ ئې کوڼ سترګي ړندې وي     د خپل یار په خطایي
که ئې کړي وي سل علمه     هم دیني هم دنیایي
همه واړه فراموش کا     چه پرې ورشي شیدایي
و مطلب ته نه رسیږي     په شیخي او ملایي
آواره ننګ و ناموس کا     په سر واخلي رسوایي
تر ناموسه ورته به شي     بې ننګي بې نوایي
هره چار ئې په اخلاص وي     نه په روي و ریایي
قبلوي په دواړو سترګو     هر چه یار پرې فرمایي
نصیحت پرې اثر نه کا     که څوك سل ځله وایي
فایده نه لري په عشق کښې     د داناؤ دانائي
مشکل کار د عاشقۍ     آسان چري دي بایي
دغه کار کولي نه شي     هر کم فهم کجایي
هر کم بخت ئې کله مومي     د دلبرو همتایي
څه په کسب مونده نه شي     دغه کار دي عطایي
چه د عشق په لومه کښېوزي     نور ئې نه وي رهایي
بې د یار له مخه نه شي     د عاشق دلکشایي
د خپل یار په طلب ګرزي     غاړي غرونه پیمایي
له عالمه وي وتلي     لکه صید صحرایي
تل تر تله ئې وطن دي     ګوشه کنج و تنهایي
مدام سوي لوغړن وي     د خپل آه په ګرمایي
هر زمان ئې په اور نیسي     د خپل یار تمنایي
نه ئې ملك و نه ئې مال وي     نه ئې زهد پارسیي
په دا هسي ګرانو چارو     معشوقه ئې آزمایي
په یوه دیدن تري یوسي     د درست عمر کمایي
هم هي هسي رنګه وژني     یاره ستا بې وفایي
چه په زړه کړم زړه مي وچوي     دغه ستا خود نمایي

هم خودي لري بې قياسه   هم د حسن زيبايي
ضرر نه لري بې نفع   ستا د مينې سودايي
ستا سودا ما لره سود دي   حق به وايمه خدايي
په هيڅ مخ کښې ليده نه شي   ستا د حسن صفايي
نمر به څه له تا سيالي کا   په دا بې سروپايي
ادراك نه رسي د سر وي   ستا د قد په رعنايي
لکه ستا چه قد بالا دي   نشته هسي بالايي
که د ستا وصال د وريا وي   زه ماهي يم دريايي
د مګسو زندګي ده   په دکان د حلوايي
زه طوطي شکر پرست يم   د ستا شوندېي ميتهايي
دا ګمان په رحمان مه کړه   چه بې تا به وپايي

# مخمس

هغه یار چه ښایسته دي تر آفتابه  مخ به کله را ښرګند کا له حجابه
بیلتانه په زړه زهیر کړم بې حسابه  یو سبب وکړې مسبب الا سبا به

چه زما ملاقات وشي له احنابه

ملاقات د ښایسته ؤ مي نصیب کړې  د ښایست په ګلستان مي عندلیب کړې
عندلیب مي په ګلشن د خپل حبیب کړې  خدایه ما په دلبرانو کښې قریب کړې

و مې ژغورې د دې اهل له عتابه

هغه یار چه زه ئې مینه په دیدار کړم  همیشه ئې و دیدن ته انتظار کړم
شپه و ورځ پسې نارې وهم کوکار کړم  که په روي ورته تمام جهان رویدار کړم

سترګې پورته کوې د ناز له خوابه

بیلتانه ئې پټ پنهم په زړه تاراج کړم  و دیدن ته ئې په هسې رنګ محتاج کړم
چه غرقاب ئې د غمونو په امواج کړم  هیڅ پایاب ئې مونده نه شي څه علاج کړم

د آشنا د میني غم ښه نا پایابه

نه چه کس یې د جمله ؤ بې کسانو  هم کار ساز یې د جمله ؤ خام کارانو
الهی په بزرګۍ د بزرکانو  زه وصال په دعا غواړم د خوبانو

لا به کله دا دعا شي مستجابه

اسیر کړي دي د زلفو په طناب یم   تکبیر کړي دي د سترګو په قصاب یم
د کشتۍ غوندي مدام په اضطراب یم   لکه زه چه ستا له غمه په عذاب یم

خبر مه شه هیڅ بنده له دې غذابه

دریغه مه وي په دنیا کښې پیدا شوي   او که وي هم په دا هسي شان خومه وي
لکه زه یم د هجران په لنبو سوي   څو به ګرزم د هجران په اور اولوي

چه سینه مي شوه په درست عمر کبابه

هي هي څه مي دا خراب خاطر ناښاد شه   زیست روزګار مي همیشه آه و فریاد شه
عمارت مي د زړه هسي رنګ برباد شه   چه حباب غوندي بې بیخه بې بنیاد شه

د ښادۍ طمع به څه کړم له حبابه

پټ پټ ګرزم د ناصح له نصیحته   راته کاندي نصیحت په څو صورته
چه توبه کړم د خوبانو له قربته   هیڅ ځواب ئې په ما نه شي له غیرته

در مانده ورته ولاړ یم لاجوابه

دا ځواب څه هسي نه دي چه په خوله شي   د عشق راز څه هسي نه دي چه وایه شي
دا مشکل حکایتونه په ما نه شي   د دې بحر بې پایان حسب په څه شي

چه ئې زه و چا ته وایم له حسابه

چا موندلي د دې بحر پايان نه دي  دغه راز و هر سړی ته عيان نه دي
هيچا کړي د دې چاري بيان نه دي  دغه واړه عاشقي ده رحمان نه دي

چه په خوله کښي در و لعل لري سيرابه

ستا جفا د حد په هور ته ده صنمه  تل مي اوښي موج وهي د زړه له يمه
څو به پټه دا قصه اوسي پنهمه  هسي ډوب په فکر تللي يم له غمه

نه پوهيږم چه په غره يم که په سمه

که خبري وي له دې هسي رنگ خواریَ  ما به نوم اخيستي نه و د یاریَ
ستا د غم په درياب ډوب يم تر مریَ  بې تا نه لرم هيڅوك د دستگیریَ

مگر ته پخپله لاس را کړې همدمه

ما وې نور به آشنائي له هيچا نه کړم  هم په دا رنگه مي نيت و، باري څه کړم
د قسمت علاج په چا شي چه ئې زه کړم  که په سل رنگه تالاش و تدبير وکړم

خلاصي نه مومم له لوحه له قلمه

خوبرويان که بې وفا دي خو هم وړه دي  عاشقان که وفا دار دي خو هم پړه دي
ستا له غمه هر چه دي ځما په زړه دي  اوس به حال و چا ته څه وايم چه څه دي

غرض دا دي چه زه گرم يم ته ناگرمه

یو خو دا چه په صورت ئې پریرویه  هم په خوي و په خصلت فرشته خویه
هم په قد و په قامت هر گوره لویه  بیا به نه مومي څوك تا غوندي دل جویه

كه ئې غواړي په هژده هزار عالمه

ستا له غمه زه په ځان كړم هسي چاري  چه دښنه ئې وبله نه كا گلعذاري
ته په څه سبب ځما دل آزاري  دا ځما گناه را وښیه دلداري

چه توبه كړم نصوحا غوندي محكمه

لاس تر غاړه د رقیب سره خندا كړې  چه ما ووینې له قصده راته شا كړې
خداي ئې وینې هغه چاري چه په ما كړې  تر ابدي ورځې پورې به جفا كړې

كه به كله وجار ووزې له ستمه

تا جه هسي بې نیازي د ځان توښه كړه  په عاشق دي د خندا زمكه متره كړه
بیا دي ورځ په غریبانو توره شپه كړه  نور دا هسي د جفا خویونه مه كړه

خلقه به دي له جوره شي برهمه

ستا ځما له میني هر څوك خبر دار دي  دا خبري كوراكور په هر دیار دي
چه فلانا فلانا سړي سره دوستدار دي  اوس په بیرته جار واته و ما ته عار دي

چه رسوا شوم تر عرب و تر عجمه

هغه ژوي چه په تا باندي مین وي  په وگړي به رسوا لكه كوهكن وي
همیشه انگشت نما په مرد و زن وي  چه دا نښي په كښي نه وي دروغژن وي

كه په هره گړۍ خوري هزار قسمه

نشانه د عاشقانو اول دا ده چه مدام ئې سريكار وي له فرياده
تل نامه د بدنامۍ وي پرې زباده نه ويريږي له پيغوره له اهداده

بې د يار د جدائۍ له ماتمه

هر چه زړه ئې مبتلا شي په بتانو زيست ئې نه شي يو ساعت بې مهرويانو
كه څوك وركړي بادشاهي د بادشاهانو په نسبت د هغو سويو سوختگانو

دا متاع ده تر يوه خسړي كمه

كه سليمان غوندي مسند ئې په هوا وي په سبب د عاشقۍ به خاك يا وي
هميشه به په فرياد و په غوغا وي چه دا هسي نشانې په كښي پيدا وي

ترو هاله پرې عاشقي ده مسلمه

عاشقي دي هيڅوك نه گڼي اسانه دا خبره ده له حده په هورته گرانه
وصال نه دي چا موندلي بې هجرانه ته له ځان سره اټكل وكړه رحمانه

په دنيا كښي ښادي چري ده بې غمه

(تصحيح، مقابله، او تدوين شو)
"بينوا"